# کندهار

د ۱۳۹۲ش کال څلرمه ګڼه

(مېزان - عقرب)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه



## سل دې ومره یو دې مه مره!

استاد عبدالباري جهاني /امریکا






# کندهار

علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنگ رياست

**دريمه دوره**
**د ۱۳۹۲ش کال څلرمه گڼه (تله - لړم)**
**پرله پسې ۵۹ مه گڼه**



**څو ضروري يادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي گټو ته زيانمني ليکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني ليکني معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- را استول سوي ليکني بيرته نه ورکول کېږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرگندوي.

**په هيواد او دباندي کي د مجلې بيي**

هيواد : ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی گډون**

هيواد : ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هيوادونه: ۸۰ - امريکايي ډالره

پته
علامه حبيبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنگ رياست
د کندهار مجلې دفتر
ټليفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

د اداري يادښت:

# لويه فرهنګي ضايعه

د اولسونو او ټولنو په بيدارولو او راويښولو کې د هغو ټولنو واقعي مشاهير او لويان لوی لاس لري. تر څو خپلې ټولنې ته د خدمت او پيشرفت په موخه خپل خلک پر ځان راټول کړي او خپلې ټولنې ته د خدمت مصدر وګرځي. د مخکښۍ او پيشقدمۍ دغه ډول ورتياوې او ځانګړتياوې خدای پاک په هر انسان کې نه وي ايښي، د ټولنې خاص خلک له دغو ښېګڼو څخه برخمن وي. دغه مقام ته رسېدل او په خلکو کې منل کېدل، ځانته اصول او پرنسيپونه غواړي. هر مشر بايد د قابليت تر څنګ اجتماعيت او عامه محبوبيت هم ولري. د زغم تر څنګ بايد د خپلو خلکو په خوی و بوی باندې هم آګاه وي، څو دی د دغو مهارتونو په ذريعه وکولای سي، د خپلو خلکو او خپلې ټولنې د اوسېدونکو درد ته دوا سي.

په افغاني ټولنه کې دغه ډول خدمتګاران او واقعي مشاهير ډېر تېر سوي دي. يو له دغو کسانو څخه اروابناد استاد عبدالرحيم هاتف وو، چې څه موده مخکې ئې د پردېسۍ او مسافرۍ په ولات کې پور پرې کړ او په هماغه پردۍ او بېګانه خاوره کې ښخ کړه سو.

استاد عبدالرحيم هاتف يو له هغو کسانو څخه وو، چې د خپل ژوند زياته برخه ئې د خپلو خلکو او خپل اولس په خدمت کې تېره کړه. هغه له هماغه پيله يو صادق او پر وطن او خپلو خلکو مين شخصيت وو. د خپلو خلکو او خپل وطن په باب د هغه صداقت او ايمانداري تر لمر روښانه خبره وه، هيڅکله ئې له دولتي مقام او دولتي چوکۍ څخه شخصي استفاده و نه کړه. استاد هاتف نه يوازې د علم او فرهنګ په ساحه کې عالم او پوه وو، بلکې په سياسي، تجارتي او اجتماعي چارو کې هم د خپل وخت له بې ساري پوهانو او عالمانو څخه وو. د استاد هاتف خبرې او ويناوې که د فصاحت او بلاغت په ګڼه سمبال وې، نو ليکنې او څېړنې ئې هم له روانۍ، سلاست او ظرافته خالي نه وې. د هغه قلم که په هره برخه کې چلېدلی دئ، پوخ او متين چلېدلی دئ، هيڅکله ئې په خپلو خبرو، ليکنو او کړو وړو کې له ابهام او پېچيدګۍ څخه کار نه دئ اخيستی، هر څه ئې په واضح او ښکاره ډول ويل او ليکل. دا نو هغه خاصيتونه دي، چې د ډېرو لږو پوهانو او عالمانو په برخه سوي دي.

د افغاني ټولنې په خاص ډول د کندهاري اولس له پاره به دا ډېره سخته وي، چې په ډېر وخت به د خپل دغه لوی او پر وطن او خلکو مين شخصيت د تشې خلا ډکه کې. کندهار مجله په خپل نوبت هاتف صاحب ته د لوی خدای له درباره د جنتونه غوښتنه کوي، خدای دې وکې چې د دوی د علميت او پوهې له سيورې څخه د دغې سيمې بچيان تر ډېره وخته مستفيد او برخمن واوسي.

په درنښت



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D

# د ښادروان عبدالرحیم هاتف په اړوند زما خاطرات

زه به د هاتف صاحب د شخصیت او پوهې په اړوند په مجرد ډول سره نه ږغېږم، بل لا د ده د کړو –وړو هغه پېښې به بیان کم چې د ده د پوهې او شخصیت ښکار ندوینه کوي او هم د ده د سخاوت او اجتماعیت ځرګندویه وي.

کله چې زه په میرویس نیکه لېسه کښې د متوسطې متعلم وم، ښاغلئ هاتف صاحب زموږ د لېسې معاون مقرر کړه سو. مدیر هم دی ؤ. ده د دې له پاره چې متعلمان ئې و زدکړو ته تشویق کړي او هڅولي وي، تر ازموینو وروسته ئې و اول نمره، دوهم نمره او درېیم نمره ته د کتابچو او قلمانو انعامونه ورکول. دغه مصرف ده له خپله جېبه څخه کاوه چې نه تر ده دمخه او نه هم وروسته بل چا داسې کار کړئ ؤ. د شاګردانو کالنۍ ازمویني تر درو میاشتو رخصتۍ وروسته د سنبلې (وږي) په میاشت کښې وې. تر ازموینو وروسته هاتف صاحب مېز ؤ چوکۍ د لېسې د ودانۍ په لوېدیځه خوا کښې ایښې ول او پیاوړو شاګردانو ته ئې یاد کړي سوغاتونه ورکول.

یوه ورځ زموږ معلم راغلئ نه ؤ، نو دی و صنف ته راغلئ او هغه یو ساعت ئې د شېرشاه

سوري بیان وکړ. څه چي زما په یادېږي هغه به دلته وکاږم.

محمدظهیرالدین بابر چي افغانستان او هند ئې نیولي ول. یوه ورځ ئې و سرغنه کسانو ته مېلمستیا جوړه کړې وه. ښایي پسونه به ئې په داښ کښي کباب کړي وو چي "تندوري" بلل کیږي یا به د پسونو ادمونه په غوریګانو کښي ورته اینښوول سوي وو. نورو مېلمنو به غوښې په لاسونو پرې کولې، خو فرید شېرشاه د ملا له تېکي څخه خنجر ورکښلئ ؤ او غوښې ئې د ګولې په اندازه ځني غوڅولې. د بابر پکښې سترګه وه او له خپلو نژدو کسانو څخه ئې د دې په اړوند پوښتنې کولې. شېرشاه چي دغه توجه وراووښته ولیدله، د غرمنې تر خوړلو وروسته ئې پښه پر آس واړوله او ځني ولاړئ.

د بابر تر مړیني وروسته د دې زوی، همایون، پر اورنګ کښېنوست. په دغه زمانه کښي چي د پښتنو خوځښت د پیر روښان تر مشرتابه لاندي پیل سوئ ؤ او شېرشاه ئې هم د یوې اوزي سپاه سالار ؤ. د پښتنو تر ماتي وروسته پیر روښان له میدانه ووت او میدان و فرید شېرشاه ته ورپاته سو او دې و خپل مقاومت ته دوام ورکړ څو چي د دې او د بابر د زوی همایون تر منځ لښکرکښې وسوې.

د همایون لښکر او سپاه د پنجاب د یوې رادې پر یوې غاړي باندي مېنه کړې وه او مخامخ ئې د رادې پر بلې غاړي باندي د فرید شېرشاه سپاه مېنه لرله. د شپې په ترڅ کښي به شېرشاه خپله سپاه وپاڅوله او د راده په اوږدو به ئې د څه ساعت وخت له پاره په حرکت کښي وساتله. کله چي به د فرید سپارې پر خپلو اسانو باندي پښه اړوله، د همایون لښکر او سپاه به هم سره په ښور

کښي سوله او د جنګ له پاره به ئې تیاري ونیوله. خو شېرشاه به د جنګ هڅه نه وکړله. خو تر څه لار وړلو وروسته به ئې بیرته و خپلې مېنې ته سپاه ورستنه کړله. دغه تمرین تر هغو پوري دوام وکړ څو چي د همایون لښکر او سپاه ئې نوره پروا نه لرله او ایسته ئې ایله ورکړه، غافله سوه. کله چي ئې شېرشاه دغه د بې باکۍ حالت ولیدئ نو ایسته لیري ئې خپله سپاه تر پتن (ګودر) ورپوري ایستله او د همایون پر لښکر او سپاه ئې په داسي ترڅ کښي غوټه ووهله چي هغوی لا په خوارې خوب بیدې ول. په دغه برید کښي د همایون لښکریان او سپاهیان ځیني ووژل سول او نورو د ځان ژغورني له پاره ځانونه و رادې ته واچول چي د کبانو شومه وګرځېدل. یوې شاعر په دغه اړوند داسي بیت ویلئ دئ چي هاتف صاحب و مونږ ته ووایه:

فرید حسن را تو شاهی دهی
سپاه همایون را به ماهی دهی

د شالمار مکتب (ښوونځ) د کسرت معلم یو خورا فعال شخص ؤ. دې د شالمار په مکتبیانو (ښووونځیانو) راز – راز د کسرت المانۍ کولې. خو دغو هلکانو د جشن له پاره د کسرت د المانیو لباس نه لارې. څکه نو د دوی د کسرت معلم یا د ښوونځ مدیر د لوی کندهار و تنظیمه رئیس، سرغنه غني ګردیزي، ته په دغه اړوند غوښتنلیک ورواندي کړ. تنظیمه رئیس پر وروکښل چي د میرویس لېسې د کسرت لباس دي ورکړل سي. دغه غوښتنلیک چي و هاتف صاحب ته وروړل سو، دې پر وروکښل چي دغه لباس د میرویس لېسې سهمیه ده. تاسي مهرباني وکئ و دوی ته د کسرت له پاره نور کالي ورجوړ کئ.



دغه اِبا د دې عامل سوه چې هاتف صاحب ئې په تېمورشاهي مکتب کښې نظربند کړ. دا وخت د دوبي رختصي وه. موږ شاګردان به د دهٔ و لیدني ته د ماپښین له خوا څخه ورتللو. ښايي نور هلکان به د سهار له خوا څخه هم ورتلل. یوه ورځ مازیګر زموږ د لېسې غټان لکه نظام (الدین)، (محمد) حسین، (محمد) حسن او حسام الدین د والي صاحب و کوټې ته ورغلو. هورې مؤظفینو راته وویل چې والي صاحب وتلئ دئ. نو موږ ورته کښېنستلو. څه نیم ساعت لږ ؤ ډېر وروسته چې تنظیمه رئیس صاحب راغلئ، ډېر په ورین تندي ئې روغبړ راسره وکړ. نظام او حسین ورته وویل چې تاسي زموږ د لېسې معاون صاحب ولي کښېنولئ دئ؟ دهٔ یو راز ؤ بل راز تورونه پوري تړل. که نه ګانه هغه رشتیا وای، باید دی محاکمه او رسماً بندي سوئ وای. نظام (وروسته په هلمند کښې حاکم) او حسین (وروسته په کابل پوهنتون کښې طبي ډاکټر) ورته وویل چې هاتف صاحب د مکتب به هلکانو کښې خورا ډېر محبوبیت لري. تاسي به ښايي خبر یاست چې په اوس کښې په څه شمېر هلکان د دهٔ و لیدني ته ورځي. نو دا که تر جشن وروسته ښوونځونه وپرانیستل سي او هلکان له دې څخه ونغوږېږي چې د دوی د لېسې مدیر بندي کړل سوئ دئ، نه ګانه ښورښ او غوغا پېښه سوې نه وي. تر دغه وروسته ئې هاتف صاحب سم د لاسه و کابل ته تبدیل کړ او هورې ئې د عسکري مکلفیت دوره معلمي په دارالمعلمین کښې بشپړه کړه. تر دغه وروسته ئې رسمي وظیفه پر ښښوله.

د لوی کندهار تنظیمه رئیس (والي او د وسله والو قواوو قوماندان) و میرویس لېسې ته دوه واري راغلئ. په هره پلا کښې دهٔ د مکتب و زدکړیانو ته وینا وکړه. زما ئې د لومړنۍ پلا د وینا یوه جمله تر اوسه په یاد ده او هم به مي ترمخه په لیکنو کښې هم یاده کړې وي. دهٔ وویل: "کندهاریانو! تاسي سړي نه لرئ!" هو، رشتیا هم، سړي خو کله شخه وي. توره هسکه غاړه وهي، نه کږه غاړه، چې یو قرباني ئې هم په خپله هاتف صاحب ؤ. نور به هم اقتصادي کمزورۍ، قبیلوي تعصباتو او نور څه ورک کړي وي.

که کندهار سړیان لرلای، نو احمدشاهي کلا باید غونډه منډه نړوله سوې نه وای. سړیانو به ورته ویلي وای چې یو شاه برج ئې د نمونې په توګه پر پرېږده چې د خپل وخت د عظمت او جوړښت ښکارندوینه ئې کړې وای.

کله چې دهٔ وویل: "کندهاریانو تاسي سړي نه لرئ!" ما له ځانه سره وویل: ار،

ځخته درواغجن دئ. وايي تاسي سړي نه لرئ. هغه دئ بازار په ډک دئ. ږيري لري او لنګوټې ئې هم تړلي دي". زه هغه زمان د وګړي او سړي په توپير نه پوهېدم. ده رشتيا ويل. هغه زمان څه، کندهار شپېته کاله وروسته هم سړيان نه لري. دغه قضاوت مي په ښار کښي پر مشاهداتو او د راډيوګانو پر اورېدني باندي دئ. پر يو شمېر مسايلو باندي مي ليکني کړي دي او تکرار به ئې تحصيل حاصل وي.

دا لا هم بايد ووايم چي "په يوه ګل سره نه پسرلی کيږي". هاتف صاحب، نوميالی صاحب، صوفي ولي محمد، لعل محمد کاکړ، فيض محمد انګار او يو ؤ نيم نور داسي کسان ول چي د چا سترګه په ډکېدله. يو شاعر چي د خپل عاشقانه مينتوب خروښ به ئې په اوز شعرونو کښي کښلئ وي، د دوی سوانح په ورځپاڼو او کتابونو کښي چاپ سوي دي، خو د يادو کړو کسانو نوم لا هم چا چيري اخيستی نه دئ.

هاتف صاحب و کندهار ته تر ستنېدني وروسته په تجارت بوخت سو. د ده تجارتي کوټې ته د ښار ډېری منورين ورتلل، ځيني د سهار له خوا او ځيني د مازيګر له خوا. په دغه کښي کم تنظيمي کار نه ؤ، بل لا يو آزادانه باندار ؤ.

يو کال د ملي شورا د وکيلانو له پاره انتخابات کېدل. طالب کندهاري چي يو پاړسيبان ؤ، ده ډېره سمه پښتو ويل. هغه وخت نورو پاړسيبانانو او هم هندوانو سمه ګرامري پښتو ويلای نه سوای. خو طالب کندهاري په پښتو هم شعر وايه او هم ئې ليکنه کوله. دی له کابله ځخه راغلئ او ځان ئې و ملي شورا ته د وکيل کېدني له پاره ونوماوه.

يو ټل کندهاريان و هاتف صاحب ته په ډله ورغلل او غوښتنه ئې ځني وکړه چي ده هم د کندهار ښار له خوا ځخه و ملي شورا ته د وکالت له پاره ځان نوموليئ وي. ده که به څه هم د خپل تجارت او تاوان ور رسېدني پلمې ورته کولې، خو هغوی په وارو – وارو پر مرکه سول او دی ئې و دې ته اړيوست چي د طالب کندهاري په مقابل کښي ئې ځان د ملي شورا و وکالت ته کانديد کړئ وي. دغه ټينګار کول په خپله دلالت پر دې باندي کوي چي په کندهار کښي نور څوک څه، بل داسي سړی نه ؤ چي دغه تشه ئې ډکه کړې وای. هاتف صاحب د دوی و ټينګار ته تسليم سو، ځان ئې د ملي شورا و وکالت ته ونوماوه او انتخابات ئې هم وګټل. دی هورې په ملي شورا کښي هم د رياست د معاون په شان انتخاب او ټاکل سوئ ؤ.

تر دغه وروسته ځينو يا لا يوه ؤ نيم پاړسيبان به و هاتف صاحب ته رد ؤ بد ويل. موږ بايد په دې وپوهېږو چي هر څوک د قانون په چوکاټ کښي حق لري چي ځان يا بل څوک د يوې چوکۍ له پاره ونوموي. ده په زور او جبر سره له چا ځخه هيڅ څه اخستي نه ول. موږ بايد فهم او حوصله ولرو، نه جاهلانه تعصب.

تصادف داسي پېښ سو چي تر هاتف صاحب وروسته يو پاړسيبان د ميرويس نيکه لېسې معاون مقرر سو. يوه ورځ غرمه ئې چي هلکان د حاضرۍ اخستني له پاره ټل – ټل ليکه ولاړ ول. د لېسې معاون چي زما ئې نوم هېر دئ شراف الدين چي د هاتف صاحب له کورنۍ سره ئې اړونديتيا لرله او دی زموږ د صنف اول نمره هم ؤ، د لين و مخي ته وروايستئ او ورته ئې وويل جي ما ته پرون، د جمعې په ورځ په باباصاحب کښي وليدلې.

ځکه ئې نو شراف الدین پړمخې پر مځکې باندې پرې ایستئ او ادرو چې یو غټ تکړه چپړاسي ؤ او پنډه لښته ورځخه وه. په دء سره ئې شراف الدین ډېر سخت لګاو کړ. شراف الدین هغه وخت کوتنه او لنډ کمیس اغوستل خو وروسته ئې چونې کړی ګڼ پرتوګ اغوستئ. تر هغو وهلو وروسته بیا شراف الدین مکتب ته نه راغلئ او مکتب ئې پر ښباوه. اوز کاله وروسته ئې خپل تعلیمات په احمدشاه بابا لېسه کښې بشپړ کړل او هم ئې په کابل کښې د حقوقو پوهیځ ووایه.

یوه ورځ سهار چې هلکان صنف صنف د حاضرۍ اخستنې له پاره لیکه ولاړ ول، او د لېسې معاون د لیکې و مځکې ته ولاړ ؤ. د ښوونځ د کسرت معلم محمدرسول جان ولیدل چې باغوان د کسرت پر میدان باندې اوبه سپرې کړې دي. دی ورغلئ او ورته ئې وویل چې اوبه بندې که. باغوان په لوړ ږغ سره وویل: زء نه پوهېږم چې زه څو آمران لرم او د چا په خوله وکم. یو وایي د کسرت پر میدان باندې اوبه سپرې که او بل راته وایي چې اوبه ځنې بندې که. زء د چا په خوله وکم؟" دغه مهال د کسرت معلم صاحب رد ؤ بد وویل: "څوک دئ چې وایي د کسرت پر میدان دې اوبه ولګول سي؟"

دغه مهال د لېسې معاون د مدیریت په خونه ننوتئ، څو ځان ئې و تلیفون ته ور رسولئ وي. د کسرت معلم صاحب د کړکۍ و مخې ته ودرېدئ او رد ؤ بد ئې ورته وویل: که درغلم نه هغه به دروکم. ته ولې، د څه له پاره د کسرت پر میدان باندې اوبه سپروې؟" (وینائې تونده او ترخه وه).

تر دغه وروسته دوه تنه مفتشان راغلل. اوز ورځې ئې له بېلابېلو کسانو ځخه پوښتنې ګروېږنې وکړې. تر دغه وروسته ئې د لېسې معاون له کندهاره ځخه و کابل ته تبدیل کړ.

هاتف صاحب چې د کابل په دارالمعلمین کښې د عسکري مکلفیت دوره تېره کړې وه. بیرته و کندهار ته ستون سو او د تجارت په کار بوخت سو. بیا کله چې ئې په ملي شورا کښې د ریاست د معاون په شان خپله دوره بشپړه کړه په کندهار کښې ئې بیر ته هغه د تجارت و چارو ته ادامه ورکړه. د دء تجارتي دفتر و چارسوق ته نژدې په هرات بازار کښې په یوء تجارتي ښار کښې ؤ، چې د ښار یو شمېر منورین به د باڼدار له پاره پر ورغونډېدل. زء و یوء واقعیت ته تر اوسه پوري هېښ پاته یم او هغه دا چې استاد هاتف صاحب، استاد نومیالی صاحب او ویران صاحب به په خپلو لویو کتابچو کښې محاسبې او لیکنې کولې او هم به ئې په همدغه ترڅ کښې مجلس هم کاوء او له نورو کسانو سره به پر علمي موضوعاتو باندې ږغېدل. ویران صاحب شاعر ؤ او هم ئې ادبي لیکنې کولې. هاتف صاحب او نومیالی صاحب متداول علوم او اړوند کتابونه ئې مغزن لوستلي ول، ای د محتویاتو په زړء ئې پوهېدل.

زمان خان یو بل د کندهار له پوهانو کسانو ځخه ؤ. دء هم خپله د عسکري مکلفیت دوره په احمدشاه بابا لېسه کښې په معلمۍ سره تېره کړه. تر دغه وروسته ئې تجارت کاوء او یو شمېر د نسبتاً متمولو کور نیو ځوانان پر ورټول ول. له دوی سره یو بل ناستګویه ځوان هم ؤ. یوه ورځ زمان خان و خپلو نورو انډیوالانو ته وویل چې دغه څوک داسې ایسي لکه استخباراتي روابط چې دې لري. کله چې دغه کس ورغلئ ؤ، باڼداریان پر دوو خواوو باندې ځله ووېشل

سول او يو پر بل ئې د بوټونو وارونه کول. هغه به يو بوټ پر دېواله موښتئ او بل به پر هغه کس باندي موښتئ. بوټ ويشتونکي به سمدلاسه ورته وويل: "وبخښه ما هغه بل ويشتی، بوټ سهواً پر تا باندي وموښتئ. لا چي به دی له يوې خوا سره په جنجال اخته ؤ، د بلې خوا بوټ به هم پر دہ باندي وموښتئ. بيا به هغيو بخښنه څني غوښته. لا چي به دغه شخړه حل سوې نه وه د بلي خوا بوټ به پر وموښتئ او بيا به هغه هم بخښنه څني غوښته. دی چي ئې دغسي درې – څلور بوټه ويشتلئ ؤ، او هم په دې پوهېدلئ ؤ چي دغه بوټونه خطائي نه پر موښلي، بل لا سم سيده ئې نوښان ګرځول کېږي. نو خود هم څني تښتېدلی ؤ.

د هاتف صاحب دوی و کوټې ته هم يو معلم صاحب هم د زدکړيانو تر رخصتېدني وروسته مازيګر مهال ورتلئ او بيا به تر هغو پوري ناست ؤ چي دوی به تياره مهال د اتو بجو په شاؤخوا کښي کوټه تړله. يوه ورځ هاتف صاحب و خپلو بانداريانو ته وويل چي دغه معلم صاحب يو راز ارتباطي کس ايسېږي. د دغه مو بايد څنګه چاره کړې وي؟

استاد نوميالي چي د اشخاصو په روحياتو پوهېدئ، ورته ئې وويل چي د دہ چاره به زہ دروکم. د دغه معلم صاحب کور په لوی کرز کښي ؤ. په دغه ورځ چي معلم صاحب و کوټې ته ورغلئ، نوميالي صاحب د پېرانانو، اوخيانو، بلاوو، مېرګيانو او داسي نورو واهي موجوداتو بيانونه پيل کړل. معلم صاحب په دغه ورځ د دہ بيانونه واورېدل، او هيڅ راز عکس العمل ئې نه وښاوہ. په ګاندہ (سبا) مازيګر چي معلم صاحب بيا ورغلئ او نوميالي صاحب لا بيا هم د اوخيانو او پېرانانو بيانونه کول. معلم صاحب په اسکېرلتيا سره ورته وويل: استاده! دغه د بلاوو بيانونه مه کوه. زہ ئې برابي لا خورا وبېرولم. زہ چي و کور ته تلم، د کارېز له يوہ کوهي څخه به ئې سر راته راوايستئ، له بل کوهي څخه به د مار په شکل راووتئ، او و بل کوهي ته به ورکښته سو، او لا به د کارېز له بل کوهي څخه د سپي په څېر راووتئ او په بل کوهي به ننوتئ. برابي کری شپه بېربدلم، خودښکه مي سم خوب کړئ وي.

استاد نوميالي ورته وويل: داسي ايسي چي مړہ دي زورور دي. دا چي اوخيانو او پېرانانو ځانونه د مار او سپي په شکل درښکاره کړي دي، نه په خپل هيبتناک شکل سره او دا چي پر تا باندي ئې غوټه وهلې نه ده هرومرو به دي پيران درننګولي وي. پېرانان، اوخياني او دا نور بد و بلاوي ټول د شپې له خوا څخه، لکه لېوان په توره تياره کښي راوزي. دوی د ورځي له خوا څخه راوتلای نه سي. دا به ښه وي چي ته و خپل کور ته په روښنايي کښي تللئ يې. داسي ايسي چي د لوی کرز و خوا ته په کاريزي کوهيانو کښي راز – راز اوخياني، بلاوي، پېرانان او داسي نور بد و بلاوي اوسېږي.

معلم صاحب په دغه ورځ هم سمدلاسه تر نمر لوېدو دمخه و کور ته ولاړئ او تر دغه وروسته چي به مکتب (ښووېځ) رخصت سو دی به سم سيده و کور ته تلئ بيا و کوټې ته ورغلئ نه ؤ.

عقل و عقيدې د منځنيو پېړيو په اروپا کښي په ټينګه سره جنګېدلي ول. د پر کله به ئې عقيدتمندانو د عقل خاوندان وژلي، ژوبل کړي او بنديان کړي ول. خو کله چي بايبل Bibal له لاتين څخه په جرمني او نورو

اروپائي ژبو سره ترجمه کړې سو، د عقل خاوندانو ورو – ورو برياوي په برخه سوې او اوس منلي کشفيات او اختراعات او نور ډېر شيان لري.

لعل محمد کاکړ يو تکړه او عقلمند سړی ؤ. د کندهار تنظيمه رئيس غني ګرديزي په کندهار ښار کښې مرستون او د بې وزلو ټاټوبئ جوړ کړل چي رئيس ئې ښاغلی لعل محمد کاکړ ؤ. مرستون يوه نوې لاری لرله چي په دغي کښې ئې د ښار ګدايان ټولول. هغه ځوانان ګدايان چي ترمخه ئې نيولي ول، و دوی ته ئې چوټيا سوروشمه کوتنه او لنډ کميس وراغوستي ول. ځنګه چي دوی تر نورو کسانو ګدايان يا فقيران ښه پېژندلای سوای. نو دوه ګدايان به د بازار پر يوء پلوان او نور دوه به ئې پر بل پلوان باندي په ځغاسته ول چي و خلکو ته به ئې په ګدايانو پسي کتل.

هر چيري چي به ئې يو ګدای په لاس ورغلئ و هغي لاری ته به ئې ورپورته کړ چي تر شا به آرامه – سوکه په پسې وه. ګدايان له همدغه اسيته څه تر ځلورو بجو دمخه و بازار ته نه وروتل او تر ځلورو بجو وروسته ئې هم چنداني په بازار کښې ګدايي نه کوله، بل لا په کاروان سرايونو کښې به ئې ګدايي کوله. دوی په دغو کاروان سرايونو کښې ځانونه مصئون احساسول.

يوه ورځ مازيګر د هاتف صاحب و کوټې ته يو ګدای دننه راغلئ او د فرش له ژۍ سره ودرېدئ. هاتف صاحب چي ورته وکتل، سر ئې وښوراوه. نته – نته ئې وويل: افسوس افسوس.

د ګدای هيله پيدا سوه او کښېناستئ. څه ګړی وروسته چي بل ګدای و کوټې ته سر را ايسته کړ او وئې ليدل چي يو ګدای ناست دئ. دی هم راغلئ لوټ سو. دغسي نور هم چي شمېر ئې و اوز کسانو ته رسېدلئ ؤ. هاتف صاحب بيا له خپله کتابته څخه سر ورپورته کړ. بيائې نته نته وويل. افسوس ئې وکړ. دوی لا هيلمن سول چي پر څه به دي مهربان شخص باندي پېښ سوي دي. د ګدايانو شمېر سوکه – سوکه ډېرېدی، څو چي د کوټې درشل په ډک سو او دوی تر دروازې پوري ورسېدل. ها له چي نور ځای پاته نه ؤ، هاتف صاحب د تليفونه غوږ – ږغی ورپورته کړه او وئې ويل: آ د مرستون رئيس صاحب! ته ولي په دغو خوارانو ګدايانو سر نه ګرځوې. چي وږي تږي په بوجړانګو کالو کښې په ښار کښې لالهانده ګرځي. و دوی ته خواړه، کالي، او ځای ورکړئ. لاری موټر مو راواستوئ چي دلته ډېر راغلي دي او ناست دي. دوی چي دغه واورېدل لکه د مرغان سېل په هوا سول. له دروازې څخه ئې پر وتلو باندي سره زورونه ول چي څوک ترمخه وتلئ وي.

هاتف صاحب په مسېدني سره ورته کتل دی هم پانياتي ؤ.

يوه ورځ يو معتبر هندو و دء ته نژدې ناست ؤ. ده يو زرغون پوټئ چي ښايي نعنا به وه ورته ونيوله او پوښتنه ئې ځني وکړه: سپټه! دغه ذي روح دئ که بې روح؟ د سپټ خبري مي اورېدلای نه سوای چي څه ئې ورته وويل. خو د دء پوښتنه ډېره معنا لرونکې وه. ځکه چي هندوان ذي روحه ژوي نه وژني او نه ئې خوري.

زء چي به د اوړ ورځو له پاره و کندهار ته له کابله څخه راغلم، نو به د سهار له خوا څخه و مطبوعاتو (اطلاعات او فرهنګ) رياست ته ورتلم او د مازيګر له خوا څخه به د هاتف صاحب و کوټې ته ورتلم. يوه ورځ د

سهار له خوا څخه ورغلم. د هغه وخت له رسمیاتو سره سم به مي دریشي اغوستې وه. په سهار کښې و کوټې ته یو سپین ږیرئ سړی هم ورتلئ چي دوی کاکو باله. د ویران صاحب بیا له دء سره ور وتل. و دء ته ئې یوه خیالي ښځه جوړه کړې وه، او راز راز بیانونه ئې ورته جوړول چي هغه څه راز او څنګه کارونه کوي. په دغه ورځ چي زء د سهار له خوا ورغلئ وم، دء زء د ښځو د محبس آمر ورمعرفي کړم. دء مخ راواړاوء او په آرامۍ سره ئې پوښتنه راڅخه وکړه چي هغه داسي او هغسي ښځه اوس په زندان کښې څه کارونه کوي؟ زء چي خالي ذهنه وم، نو نه پوهېدم چي څه ورته ووایم، او بل دا چي زء ډرنامې هم جوړولای نه سم. څکه نو له موضوع سره سم ویران صاحب زما پر ځای باندي جواب ورکړ. دء لکړه پر پورته کړه او ورته ویل ئې: ته چپ سه! خو ویران صاحب به دی بیا او بیا وخښماوء.

زه چي یوه بله ورځ هم بیا د سهار له خوا څخه و کوټې ته ورغلئ وم هورې یو نسبتاً ښه ملبس کس ناست ؤ. سپین کالي او شنه صدرۍ ئې اغوستې ول. هاتف صاحب ورته وویل چي زء د پښتو ټولني رئیس یم او کندهار ته د شاعرانو د شعرونو اورېدني له پاره راغلئ یم. خو په پښتو نه پوهېږم. دء هم له جیبه څخه یو بنډل کاغذونه وروکښل او د خپلو اشعارو په ویلو ئې پیل وکړ. زء چي تصنع کولای نه سم د خندا له لاسه به پرله رغښتم. زما پر ځای باندي هاتف صاحب پوښتني څني کولې. یوه پوښتنه چي زما لا تر اوسه پوري په یاد ده داسي وه: څنګه چي دء په خپل شعر کښې لنډۍ یاده کړې وه، نو هاتف صاحب ورته وویل چي پښتو ټولني رئیس صاحب وایي دغه لنډۍ څه شي ده؟

دء راته وویل: "لنډۍ امو مار لویشتکی نیست امو مار لویشتکی لنډی است".

د شعرونو تر لوستلو وروسته، هاتف صاحب ورته وویل: رئیس صاحب وایي چي و دء ته یو سلی انعام ورکه چي خورا ښه شعرونه ئې وویل.

هغه زمان سل افغانۍ ډېر څه وې. یو چاریاک ښه انګور (لال، ایته، سابي، کلمک) په پنځه افغانۍ ول. په کابل کښې یو خوراک ورجي د غوښو او سالنه سره په لس افغانۍ وې.

یوه ورځ پر هاتف صاحب باندي ئې ورور عبدالواسع انتقاد وکړ چي په کور کښې ئې ګاراجونه جوړ کړي دي او د سرپوزې په باغ کښې ئې کوټۍ جوړه کړې ده. ما ئې دغه انتقاد و دء ته وایه. هاتف صاحب راته وویل: "ورته ووایه چي راسه داغه ئې ستا".

دغه یادونه مي د دې له پاره وکړه چي دء له ورونو او خوندو څخه څه نه دریغول. د هغیو پر غاړه ورسره تلئ. واسع د خپلو تعلیماتو د مصرف اتیا زره افغانۍ و حکومت ته ورکړې او په خپله و امریکا ته ولاړئ. هورې ئې ټکسي چلاوء. هغه هم داسي چي د یوې مشهوري ودانۍ سره به ئې ټکسي درولئ ؤ. دی به ئې په زینو کښې ناست ؤ او ناولونه به ئې لوستل. عامل چي به ئې هر څه ؤ، ښایي ګروم depression ؤ. هورې په ځواني کښې مړ سو. که دء په خپلو پیسو سره یو دوکان یا رستورانت یا داسي بل څه کړي وای ژوند به ئې سم سوی وای. په امریکا کښې هغه څوک بریالي وي چي د هنر او کمال خاوند وي یا سرانې او کینګ وي.

یوه بله خاطره به لا هم زړء نازړء بیان کم. هغه دا چي یوه د جمعي ورځ یارانو په

باغ کښې څه یو – یو ګیلاس زدوولي بنګي وچیښلې. د دغه اغېز پر بېلابېلو کسانو باندي بېلابېل ؤ. یوه غوغا جوړه کړې وه چي زما زکندن (جان کندن) دئ. ژر یو ملا راولئ چي یاسین راباندي ووایي. بل بیا ویل چي قلم و کاغذ راوړئ چي زه وصیت وکم څو له دې دنیا څخه بندي غاړي تللئ نه یم. نومیالي صاحب چي دغه حال ولیدئ، په ډاکټر پسي و ښار ته ولاړئ. هاتف صاحب سم ؤ او د چا د غوغا په قصه کښې هم نه ؤ. په دغه ترڅ کښې یو لالهانده ګرځېدئ چي هغه څوک چیري دئ؟ هاتف صاحب ورته وویل چي هغه و لښتي ته ورولوېدئ او یو دغسي و باغ ته وېوړئ. هغه ورته وویل چي خو هغه سر ئې لګن ؤ. ده ورته وویل: سر ئې داسي جنګ نیولئ ؤ. په لښتي کښې نو داسي یوه لوېشت لوړي اوبه بهېدلې. هاتف صاحب ګرځېدئ او د یوه او بل حال ئې کوت. "مانبي (محمدنبي) ته خو داسي ناست یې لکه چغال ته چي بنګي ورکې".

مانبي ورته وویل: خو هغه دئ هغسي دي راته وویل: زه به یوه پلا یو راز کښېنستم بیا به بل راز کښېنستم. لس رازه کښېنستم څو تا دغه راته ویلي نه وي او دا دئ اوس دي هغسي راته وویل.

محمدنبي خان به و باغ ته خپل څه اته کلن زوی هم له ځانه سره بېوئ. یوه ورځ دغه هلک د پک بیان کاوه. پلار ئې ورته وویل: زویه پک – پک ډېر – ډېر مه یادوه. ته نه وینې چي خپل پلار دي پک دئ. زوی ئې ورته وویل: ار، ته نو کمه دئ چي پک یې؟ ته خو لګن یې.

محمدنبي خان ورته وویل: زویه، پک – پک ډېر – ډېر مه یادوه چي پلار دي هم پک دئ.

زوی ئې ورته وویل: ار ته نو ولي پک یې، ته خو لګن یې.

څوک به وایي چي نو په خپله ستا څه حال ؤ؟ ما چي به و هر یوه ته وکتل داسي شین به د خندا ولاړم. بیرته به مي چابک و مځکي ته وکتل. و مځکي ته چي به مي کتل خندا نه راتله. خو بیا به هرومرو و یوه یا بل ته راڅخه کتل کېدل او بیا به له خندا څخه داسي میل ولاړم. ژر به مي بیا و مځکي ته وکتل چي ته ولي پر نورو باندي خاندې. هغوی خوا بدوي. بیا و چا ته مه ګوره او مه خانده. خو نه مي ورته کتل په واک کښې ول او نه مي خندل په واک کښې ول.

څه ګړی وروسته استاد نومیالی له ډاکټر محمدصدیق سره راغلئ. نومیالي صاحب ورته ویل: څه چي ما ترمخه درته ویلي دي ته هغه مه منه. ځکه چي ما هم چښلي دي. اوس ته خپله ډاکټري پر وچلوه. ډاکټر محمدصدیق یوه یوه که و چا ته دوې ګولۍ ورکړې چي ځیني ئې بیده کړل او ماپښین مهال چي له خوبه راویښ سول هم به داسي منګ ناست ول.

که زه په کندهار کښې وای او د هاتف صاحب و کوټې ته ډېر ډېر ورتلای ښایي د ده پر خاطراتو باندي به یوه لنډه مقاله نه، بل لا به یو غونډ کتاب کښل سوئ وای.

د هاتف صاحب و کوټې ته اوهم د ده و کور ته ډېری کسان ورتلل چي ما ئې ډېری کسان په نامه نه پېژندل. هغه چي مي پېژندل ښاغلی استاد محمدانور نومیالی، شیخ صاحب عبدالغفور، مدیر صاحب عبدالباري خان، عبدالهادي ریشا چي کله کله به ئې لا یو و دوه خپل شعرونه هم لوستل. معلم صاحب محمدنبي، ډګروال صاحب او ډېر نور کسان.

عبدالباري جهاني – ويرجينيا، امريکا

# سل دې ومره يو دې مه مره!

يوه ورځ به دې ږغ وشي عـــلي خانه
چې فلانی هم لکه ګرد و غبار تېر شو

د ۲۰۱۳ د اګسټ د مياشتې پر نونسمه د دوشنبې په ورځ د کندهار يو نامتو اجتماعي او سياسي شخصيت عبدالرحيم هاتف، چې په يوه حساب ئې په خپل وخت کې د کندهار د منورينو يو بشپړ نسل، د ادبي او اجتماعي خدمتونو پوروړی دئ، وفات سو. اناالله و اناالیه راجعون.

عبدالرحيم هاتف، چې د کندهار ډېرو زياتو خلکو د معاون صاحب په نامه پېژندی، د نن څخه تقريباً شپږ اتيا کاله مخکې د کندهار په دوهمه ناحيه کې، په يوه داسې منوره کورنۍ کې سترګې نړۍ ته پرانيستي وې چې د پلار او مور له خوا ئې زياتره نيکونه عالمان او شاعران تېر سوي وه. پلار ئې مولوي محمد ويس کاکړ شاعر وو او مرحوم بېنوا ئې په اوسني ليکوال نومې کتاب کې يو انتقادي او اجتماعي نظم قيد کړی دئ.

و مســــلمان ورور ته آخــر تېره اغــزی پر څه ســوې
داسې بې ننګه او ناسيال غوندې ځلمی پر څه سوې

د مرحوم عبدالرحيم هاتف مور د کندهار د يوه خوږ ژبي اجتماعي شاعر رحمت الله بابا لور او د خپل وخت د يوه مشهور شاعر عبدالله محزون لمسۍ وه. پخپله هاتف صاحب هم مرحوم بېنوا ته د خپلې سوانح د ليږلو په ترڅ کې پخپلې کورنۍ وياړي او وايي که مبالغه روا وي نو بايد ووايم چې زه د شعر او ادب په غېږ کې روزل سوی يم، ليکن حقيقت دا دئ چې د شعر او نفسي ادب په لحاظ و خپلو اسلافو ته پوره نسبت نه لرم. البته دا خبره بايد د مرحوم هاتف صاحب د خپلې ذاتي شکسته نفسۍ او په حيا کې د افراط څخه وبولو. که نه نو په پښتو ژبه ئې د حميد ماشوخيل احوال او اشعار کتاب ليکلی، ابن سينا بين الدين والفلسفه ئې له عربي څخه په فارسي ترجمه کړی، تنقيد شعرالعجم ئې د اردو څخه فارسي ته ترجمه کړی او بېنوا ته د خپلې لنډې سوانح د ليکلو په وخت کې ئې کښلي دي چې دغه ګړی د روحياتو په باره کې له انګليسي ژبې څخه پښتو ته د يوه کتاب په ترجمه کولو لګيا دئ. په شپږو ژبو (پښتو، پارسي، اردو، عربي، انګريزي او

هالنډي) پوهیدل او په پنځو ژبو لیکل او ترجمه کول پخپله ساده خبره نه ده. هاتف صاحب، په هغه زمانه کي چي په کندهار کي سواد تقریباً د نشت په اندازه وو، د ادبیاتو پوهنځی په اعلی درجه پای ته رسولی او یو څه وخت ئې د میرویس لیسې د مدیر د مرستیال په حیث، وروسته د احمد شاه بابا په لیسه کي د ښوونکي په حیث او یو څه وخت ئې د پوهني وزارت څخه بهر اداري کارونه کړي او په پای کي په شخصي کاروبار لګیا سوی دئ.

ما په برنده څواني کي، چي د یوولسم او دوولسم ټولګۍ زده کوونکی وم، د کندهار په میرویس رستورانت کي، په هغو ازادو مابښامنیو غونډو کي، چي د کندهار منورینو به ګرداو باله، د مرحوم هاتف صاحب په سل ګونو علمي او سیاسي ویناوي اوریدلي دي. که د هغه ګرداوونو ځیني غړي، چي اوس به هم ژوندي وي، زما څخه خپه نه سي نو زه په پوره زړه ویلای سم چي هاتف صاحب د ګرداو پر ټولو غړو غښتلی وو. ټولي خبري ئې علمي او له یوې بلي سره د مرغلرو د لاړ په ډول پېیلي وې. پر حقیقت مین وو. له هیڅ چا څخه نه بېرېدی او د دې مدعا شاهد مي د اولسي جرګې په دوولسمه دوره کي د هغه ویناوي دي، چي د خپلو عقایدو او نظریاتو د اظهارولو په وخت کي ئې د هیڅ واکمن مخ



ته نه دي کتلي. زه په پوره جرئت سره ویلای سم چې مرحوم عبدالرحیم هاتف په هغو کسانو کې وو چې د سل دي ومره یو دي مه مره متل ئې په حق کې صدق کوي. او دا متل د هر چا له پاره نه راځي.

مرحوم بېنوا ته د خپل شخصیت د معرفي کولو په برخه کې هم په شکسته نفسي کې افراط کوي او وایي چې زه یو قانع، بې استقامته، عافیت پسنده، بېرندوکی، شرمندوکی، متحمل او په محدوده ساحه کې اجتماعي انسان یم. دوستان مې له ځانه ځخه خوشاله ساتلي دي، د تکلف او درواغو ځخه مې ډېر بد راځي، رسمي ژوند راباندي درنېږي ...

د تېر سپټمبر په میاشت کې په هالینډ کې د محمد امین باوري او عبدالله احسان سره کور ته ورغلی وم. د ټول روغتیایي تکلیف سره ئې زموږ ښه میلمه پالنه وکړه. کله چې مې د افغانستان په سیاسي میدان کې د خپلې فعالي ونډې اخیستلو په باره کې خبره ورسره میدان ته کړه نو د یوه مشر دوست په حیث ئې په ډېر ادب، چې د ده د اخلاقو یوه برخه وه، ما ته را وفهمول چې دا میدان زما نه دئ. زما به د هغه هوښیاري خبري او سپیڅلي دوستانه مشورې هېري نه سي. زه افتخار کوم چې د افغانستان له دغه هوښیار علمي او سیاسي شخصیت سره مي له نیژدې پېژندل. راباندي ګران وو، احترام مې درلود او دغه علت دئ چې نن ورځ ئې کمبود احساسوم. د هغه یاد دي د نورو تللیو وطن پالونکو پوهانو سره یو ځای تازه وي. زه د هغه د درندې کورنۍ، د یوه خواخوږي په حیث له ټولو سره غمشریکي کوم. زامنو، لوڼو، مېرمني او ټولو دوستانو ته ئې صبر جمیل او اجر جزیل غواړم.



احمد صميم

# د هاتف شخصي او اجتماعي ژوند

زه د هاتف صاحب پر سياسي ُبعد نه ږغېږم، فقط د ده پر شخصي او اجتماعي ژوند باندي څه خبري کول غواړم:

۱. د ويران صاحب په ذريعه د غريبو انډيوالانو سره نقدي کومکونه کول.
۲. د خپلو وروڼو او خويندو حقونه ورمعلومول او بيا بيرته په خپل تجارت کي د ځانه سره شريک کول.
۳. خپلي يوې خور ته ئې په خپل کور کي څه خوني ورجلا کړې او خپل اخښى نېک محمد ئې د ځانه سره منشي وټاکى او کافي معاش ئې ورته تعين کړ.
۴. خپل خوريان او خورځې ګاني ئې داسي بللې لکه خپل اولادونه.
۵. هاتف صاحب په معاملاتو کي وعده خلافي نه کول، قسمونه ئې نه اخيستل، د عدل او انصاف ډېر طرفدار وو. جنجال ئې د چا سره نه کاوه.
٦. مازيګرنى بانډار د ده پر کوټه باندي جوړېدى تر ماخستنه پوري.
۷. د جمعې د شپې بانډار د دوى پر کور باندي وو او انډيوالانو ته ئې ډوډۍ هم ور کول.
۸. د جمعې د ورځي بانډار په سرپوزه کي د ده پر باغ باندي جوړېدى.
۹. خپلو ټولو انډيوالانو ته احترام درلودل او د هر يوه سره جلا جلا ظرافت استعمالول.
۱۰. د نورو تجارانو انګليسي تلګرافونه په وړيا ډول ورترجمه کول.
۱۱. په تجارتي حسابو کي دومره تکړه وو، چي ميرزايانو به په شپو شپو کلنى بلانس ورته جوړ کړ او د ټول کال تفاضُل او کسرات به ئې معلوم کړل. هاتف صاحب به دغه بلانس د خپلي شخصي کتابچې سره وکوت که به ئې سر سره وخوړ بس ويل يې

دا درست دئ که به ئې سر و نه
خوږ ویل ئې تاسي بیا بیا غور پر
وکړئ. له دې څخه معلومېږي
چي ده خپل تجارت په پټه
خوله هم کنټرولاوه.

١٢. د بزګرو سره به ئې حساب پټ
په کور کي تصفیه کاوه او ګرداو
ته به ئې شخصي مسایل نه
ورګډول.

١٣. څو واره د وزارت تجارت
وړاندیز ورته سوی وو، خو ده رد
کړی وو.

کله چي په ١٣٥٩ش کي د هاتف زوی کریم د احمدشاه بابا د لېسې سره ترورېږي هاتف صاحب کور خرڅوي او کابل ته کډه کېږي او د ده سیاسي ژوند شروع کېږي او ما مخکي وویل چي پر هغه اړخ ئې زه نه رږغېږم.

هاتف صاحب په تقریر او تحریر کي محلي وراشې کارولې. تجارتي دفتر ئې ټوله په پښتو وو. ژوند ئې ټوله پر یوه منظم تقسیم الاوقات باندي عیار وو.

د باندار پر وخت به ئې شخصي تجارتي او دفتري مسایل نه څېړل او د انډیوالانو په انتخاب کي به ئې د پوره دقت څخه کار اخیست او د هر هر چا سره ئې نه لګېده.

خبري ئې ډېري سوکه، منطقي او استدلالي وې او مخاطب ته به ئې په ډېرو واضحو الفاظو قناعت ورکاوه او د مخاطب سر به ئې ښه ورخلاصاوه. خبري به ئې ډېري لږ کولې او ډېر څه ئې اورېدل او د

مجلس ډېر ښه روانشناس وو.

## کندهار او ګردابونه

**د هاتف د ګرداب انډیوالان د عطرو په سرای کي:**

١. شیخ صاحب چي هاتف صاحب او نورو ټولو ډېر احترام ورته درلود.
٢. عبدالباري آشنا
٣. کاکاابراهیم جان کاکړ
۴. محمدانور نومیالی
۵. غلام نبي هوتک
٦. عبدالصمد ویسا
٧. ویران صاحب
٨. عبدالهادي ریشا
٩. ډاکټر صاحب غلام محمدخان هوتک او ورور ئې صاحب نومېدی.
١٠. ډاکټر محمدصدیق سدوزی
١١. اخترمحمدخان د وړیو د فابریکې مدیر
١٢. مدیر صاحب محمدنبي خان محمدي د میرویس لېسې مدیر
١٣. حاجي محمدنبي د جهاني اوسنی خسر
١۴. سرور کاکو دلال
١۵. نورمحمدلالا د سطرنج انډیوال.

او کله کله چي به له کابل څخه کوم پوهان راتلل د دوی د مجلس لیدنه به ئې کول، لکه: حبیبي صاحب، الفت

صاحب او بعضي نور چي اوس زما ذهن ته نه راځي.

**د هاتف صاحب د ګرداب د غړو تر منځ مشترک ټکي:**

که څه هم په دې ګرداب کې د مختلفو فکرونو خاوندان کښېنستل خو د دوی تر منځ مشترک ټکي لاندي نکات ول چي دوی به بحث پر کاوه او ټول پر متفق وه:

۱. د استبداد د دورې ناخوالي غندل
۲. خرافات، مزخرفات، بدعات او بد رسومات غندل.
۳. بعضي اسلامي او فلسفي مسایل څېړل.
۴. تاریخي او جغرافیایي مسایل څېړل.
۵. پر اولسي وراشو او لهجو باندي رغېدل.
٦. پر نورو ساینسي تحقیقاتو باندي بحث کول.
۷. د بي بي سي خبرونه اورېدل.
۸. د ښار پر ښکلا، نرخ و نوا او نظافت باندي بحث کول.
۹. د درباري ملایانو او درباري لیکوالو سره ئې نه وه جوړه.
۱۰. قبر پرستي او زیارت پرستي ئې نه خوښول.
۱۱. رشوت، اختلاس، احتکار او اداري فسادونه غندل.
۱۲. د کوډګرانو، تعویذ فروشانو او غیب ګویانو سره ئې نه وه جوړه.
۱۳. قومي او قبیلوي تعصبونه ئې نه خوښول.
۱۴. د مشروطیت جنبش ئې خوښاوه.
۱۵. د مطبوعاتو د رُشد او خصوصاً د ادبي تحقیقاتو ډېر طرفدار وه.
۱٦. زکاتونه او صدقات ئې صرف د غریبانو حق باله، د مسجد امامانو انحصار ئې نه خوښاوه.
۱۷. د لر او بر پښتنو د حقوقو دفاع ئې کول.
۱۸. د پوهنتي انکشاف ئې غوښت.
۱۹. د فیوډالیزم او دربار څخه ئې ډېر بد راتلل.
۲۰. د بیان د معقولي آزادۍ طرفداري به ئې کول.

خلاصه دا چي دوی ټول د یوه مترقي عادل نظام غوښتونکي ول.

د ظلم او بې عدالتۍ څخه ئې بد وړل. کله کله به ئې په خپلو منځو کې فی البدیهه یو بتیزه یا نیم بیتیزه مشاعره هم سره کول، چي په دې برخه کي نومیالی، ویران، ریشا او خپله هاتف ډېر توپان کاوه او سره خندل به ئې چي د هغې خندا زمزمه ئې تر اوسه زما غوږو ته راځي.

**د شېراحمد خان د کوټې ګرداب د موسی خان په سرای کي:**

په دې ګرداب کي خپله

شېراحمدخان، شېخ صاحب، نورالحق خان توخی، اغامحمد خان، عبدالرحیم خان د طالب صاحب پلار، چاچا معصوم د بختیالي صاحب پلار، محمدعلي خان د سطرنج قهرمان د افغانستان په سطحه، غلام جیلاني خان د حیدرجان مستوفي پلار، عبدالهادي خان بحر، محمدحسین رېدی او کله کله به فضلو اخندزاده صاحب هم راتلی.

دا نو هغه وخت دئ چي رئیس صاحب عطاجان او موسی خان له دوی څخه وفات سوي وه او پر ځای به ئې احمدعیسی او احمدموسی راتلل.

له کابل څخه چي به کله بېنوا صاحب، خواخوږی صاحب، واسعي صاحب او علامه بابا راغلل نو پر دوی به ئې پوښتنه کول او آغا محمد خان به په پښتون باغ کي مېله ورته جوړول.

د شېراحمدخان د کوټې ګرداب ډېر سنګین او خاموشه ګرداب وو. چنداني حرکت ئې نه معلومېدی. فقط روزمره مسایل به ئې سره بیانول خو روڼ اندي ول. ډېر محطاط ول. ځکه چي بحر او غلام جیلاني خان بندیان سوي هم ول.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- تر ټولو ستره غلطي هغه ده چي هیڅ زده کړه ځني و نه سي.
- یوازي شهامت کولای سي چي ژوند رهبري کړي.
- د ادب او احترام کولو خوند د ښې نڅا د خوند په شان دئ.
- د عدالت ځنډول بې عدالتي ده.
- د دې له پاره چي ژوند د حرکت په حال کي وساتل سي د هدف لرل ضروردي.
- نا امیدي د احمقانو نتیجه ګیري ده.
- د ډوډۍ پرهېز جسمي روغتیا راکوي او د خبرو پرهېز روحي سلامتیا.
- هلته چي ښځه نه وي هلته به مینه نه وي.
- د قدرت څخه بیا بیا کار واخله، هغه څه چي اوس مشکل درته ایسي هغه به دې د هري ورځي کار وګرزي.
- ځینو خلکو ته د یوه شي په هکله شک کول د بل شي په باب روند باور دئ.
- هغه څوک چي په هیڅ نه پوهېږي د هیڅ شي په باره کي شک هم نه کوي.
- زما بدایي زما په شتمنۍ کي نه بلکي زما د غوښتنو په لږوالي کي ده.
- ژوند د بایسیکل د چلولو غوندي دئ، سړی تر هغو پوري نه ځني رالوېږي چي پایډل وهل ئې بس کړي نه وي.
- ناکامي د بریالیتوب لوی لار ښود دئ.

***

حاجي عبدالظاهر څرک

# اروابناد عبدالرحیم هاتف

مرحوم عبدالرحیم هاتف زموږ د فرهنګ د آسمان هغه ستوری وو چې د ده استعداد او زکاوت چنداني تر دا نورو ستورو کم نه وو.

دی د مولوي محمدویس کاکړ زوی وو چې پلار ئې هم د خپل وخت له جیدو علماوو څخه شمېرل کېدی. په ۱۳۰۵هـ ش کال د کندهار ښار د دوهمي ناحیې میرهزار کوڅې ته نژدې کوڅه کې زیږېدلی دئ.

دی یو ربښتینی، صادق، پاک نفسه او د هیواد خدمتګار وو. دی د داسي خواصو خاوند وو چې په اوس وخت کې ئې ساری نه لیدل کېږي. ده به ټول عمر ربښتیا ویل او د درواغو څخه به ئې بد وړل.

امانت کاره، مخلص او عاجزه انسان وو. پر دې سربېره پر آشنایي ټینګ سړی وو. دی پوخ لیکوال او ښه شاعر وو. انګلیسي، عربي او اردو ژبې ئې زده وې.

پر علمي ډګر سربېره د تجارت په ډګر کې هم لوی پهلوان وو. د ده تجارت خانه د کندهار ښار د احمدعلي اخندزاده په سرای کې وه. د کندهار ډېرو تجارانو به د ده څخه د تجارت په باب زیاتي مشورې غوښتې.

د اعلیحضرت محمدظاهرشاه په دور کې د هغه دور صدراعظمانو نوراحمد اعتمادي او ډاکټر عبدالظاهر په خپلو کابینو کې ده ته د تجارت د وزیر په حیث وړاندیزونه وکړل مګر ده رد کړل.

د سیاست په ډګر کې هم مرحوم هاتف صاحب تر چا په کمه نه وو. د شهید ډاکټر نجیب الله د ملي روغي جوړې د پروګرام اکثره برخې د ده په نوښت جوړې سوې وې.

که چیرې نوموړی پروګرام عملي سوی وای افغانستان به د بربادۍ و لوېې کندې ته نه وای لوېدلی.

متاسفانه چې هغه وخت د اوسني شمال ټلوالي له خوا ډاکټر نجیب ته کودتا وسوه او د سولې پروګرام ئې ورګډوډ کی.

هاتف صاحب یو وخت د جمهور رئیس د مرستیال په توګه یو وخت عراق ته رسمي سفر درلود. صدام حسین د ملاقات وخت یو ساعت وټاکه.

کله چې هغه د ده ملاقات ولید ډېر خوښ سو، ځکه هاتف صاحب پر عربي ژبه کامل تسلط درلود، د یوه ساعت تر پوره کېدو وروسته صدام حسین یو ساعت نور وخت ورکړ. که څه هم د صدام حسین وخت ډېر کم وو مګر صدام د ده په مجلس نه مړېدی. درې ساعته ئې مجلس ورسره وکړ. هاتف صاحب ډېر حاضرجوابه هم وو. کله به ئې د پوښتني داسي جواب ورکړ چې تا به ویل ده ډېر وخت فکر پکښې کړی دئ.

هاتف صاحب زما سره ډېره خط روي درلوده. د دغو لیکونو سلسله ئې ما د کندهار مجلې ته ورشروع کړېده چې په ترتیب سره به چاپ سي.

ممکن د دغو لیکونو څخه یو ښه کتاب هم جوړ سي او ښاغلي روهیال ئې د چاپ وعده هم کړېده. پر لاسو دې برکت وي. ما د ده له لیکو څخه ځیني ګټوري جملې را اخیستي دي چې ستاسي حضور ته ئې وړاندي کوم.

۱. سړی فکر کولای سي چې د زړتیا له اغېزې څخه د خدای تعالی اوالعزمه پیغمبران حضرت نوح او حضرت ابراهیم علیهما السلام خوندي نه وه، پاته ما غوندي د خدای عاجزه بندګان خو لا هلته پرېږده.
۲. د داسي کار څخه پرهېز وکړه چې تر نکل ئې وپوهېدې ډېر وي.
۳. حضرت علي کرم الله وجه فرمايي: کله چې د دنیا کار کوې داسي ئې کوه لکه تل چې ژوندی یې، کله چې د آخرت کار کوې داسي فکر کوه چې ګویا دغه دم مرم.
۴. هیڅ درنده، خوځنده، چرنده، پرنده او دونده له لوږي نه مري.
۵. زما پر عمر د وربښمینو زلفو او خاشو توپیر نه سي کېدلای.
۶. اوس وخت لکه د ګوډ تېمور وخت د الامان ږغ تر آسمانه ختلی دئ.
۷. زموږ تر اوسه لا چنګېزي دور په مستۍ کي دئ. د تېمور نوبت لا غاړي غاړي ولاړ دئ.
۸. انګرېزانو شریف حسین د عربي نشنلیزم په نامه د ترکي اسلامي خلافت سره وجنګاوه. او په ظاهره عربي قومي حکومت په حقیقت کي د پرنګي د نیابت تاسیس وو.
۹. پر کریم قاسم باندي د پرنګي د نه تسلط ناخوالي تر اوسه صدام حسین ګالي او دی د عربي قومیت په ګناه دا اته کاله تر تفتیش لاندي دئ.
۱۰. اخوانیت اسلام ته ضرر نه رسوي او نه بل چا ته ګټه اړوي، صرف قدرت ګټي او په انحصاري توګه ئې استعمالوي او له استدلال پرته د اتباع تقاضا

کوي که ئې څوک خبرو ته غاړه نه کېښېږدي نو د تکفير او بغاوت په توره ئې وهي.

۱۱. د افغانستان اقتصادي، نظامي او فرهنګي بنیادونه ارادتاً له منځه وړل سوي دي.

۱۲. دا مځکه او آسمانونه ټول د خدای (ج) ګڼم نو ځکه د قبر فرمايش نه لرم.

۱۳. ما په هيڅ حال کي ضبط النفس له لاسه نه دئ ورکړی. دا زه د خدای تعالی توفیق او هدايت ګڼم، پاته ژوند اوږد نه راته ښکاري نو ځکه سودا ئې هم بايد اوږده نه وي.

۱۴. د سعادت قدر تر زوال وروسته معلومېږي.

۱۵. د مجاهدينو د مشرانو جهاد په اموال اتباعهم او انفس غيرهم سره چلېږي.

۱۶. اوسني خليفه ګان د پلي سفر ثوابونه و نورو ته پرېږدي.

۱۷. زموږ خلک هغه وخت رجال مني چي له صحنې ووزي او د اېبجي سترګي پسله مرګه بادامي بولي.

۱۸. موږ اکثره ظالمانه لوبو ته د ښکار او ښکار ته د سنت نوم ورکوو.

۱۹. د قد رت لوري سکندر اعظم تر توري تياري تېر کړ او د پيسو هوس قارون په مځکه ننويست.

۲۰. سرتمبه ټولني د نوو اکتشافاتو څخه کرکه کوي، خصوصاً هغه اختراعات چي د دوی کټوري کړي دنيا ته نوي چولې او لاري خلاصوي.

۲۱. موږ سورة فاتحه يوازي په فاتحه کي لولو او د رب العالمين د پراخ نظری په مفهوم نه پوهېږو.

۲۲. عمر بن عبدالعزيز د بيت المال تېل په شخصي مجلس کي نه مصرفول او ځان ئې د يوه خراب پُل مسئول باله چي ولي دغه بُزه پکښي غوزاره او ګوډه سوېده.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- موفقيت د هغه څه په لاس راوړل دي چي ته ئې غواړې او خوشحالي د هغه څه غوښتل دي چي ته ئې په لاس دروړې.
- هغه وخت چي خوشحاله يې مه غواړه چي لا نور هم خوشحاله واوسې.
- موږ د خپلي ميني د پټولو له پاره د نفرت تر پټولو زياته هڅه کوو.
- تود ه مينه ژر سړېږي.

***






لیکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# جاپان ته د ایوب خان سفر

بسم الله الرحمن الرحیم

سردار ایوب خان (ولدِ امیر شیرعلی خان) د افغانستان یو ملي اتل دئ، چی د میوند په فاتح سره شهرت لري. سردار ایوب خان د غیرت او شهامت له مخي د وزیر اکبر خان (ولدِ امیر دوست محمد خان) سره برابر دئ. د انگرېزانو سره په لومړۍ جگړه (۴۱-۱۸۴۰) کي یو شمېر ملي مبارزینو او اتلانو د وزیر اکبر خان څخه مخکي د انگرېزانو پر ضد پاڅون پیل کړی وو (لکه عبدالله خان اڅکزی، امین الله خان لوگری، میربچه خان، سلطان جان او ډېر نور) او ټولو په گډه انگرېزان تباه کړل؛ مگر د انگریزانو سره په دوهم جنگ (۱۸۸۰ - ۸۱) کي د آزادۍ غوښتونکو مشري یوازي د ایوب خان په لاس کي وه، چي د میوند په دښت کي ئې انگرېزان تباه او برباد کړل (د ۱۸۸۰ د جولای ۲۷). په دې جنگ کي څه

باندي ۱۳۰۰ برتانوي پوځیان ووژل سول او خورا زیات هم زخمیان سول او ټوله وسله او جبه خانه ئې ونیول سوه. دغه سوبې د روحیاتي او معنوي پلوه ستر اهمیت وښندی چې له امله ئې ببل سوی کندهار پسله ۸۸۸ ورځو بیرته د خپل مورني هیواد افغانستان سره ملحق سو. هو! دا بې له شکه د ایوب خان او ملگرو ستر ملي خدمت دئ، چې افغان تاریخ پرې ویاړي. د میوند سوبه هغه تاریخي پېغور دئ چې برتانوی نسل به تل د دې نوم په اورېدو سره روحاً ځورېږي.

غازي ایوب خان د همت، شجاعت او شهامت له مخي بې له شکه د امیر شېرعلي خان ځای ناستی کېدای سوای خو د څلورو عواملو له مخي ئې د واکمن کېدو چانس نه درلود:

لومړی دا چې د خپل مشر او سکه ورور یعقوب خان ډېر احترام ئې کاوه.

دوهم دا چې پلار ئې شهزاده عبدالله جان چې خورا ډېر پر گران وو، خپل ولیعهد ټاکلی وو.



درېیم دا چې د سیاسي ځیرکۍ او اداري چالاکۍ څخه لږ برخمن وو.

څلورم دا چې د انگریزانو سره ئې غلیمانه رویې او د هغوی توطیې د ده مخه نیوله.

په هر صورت، د میوند تر سوبې وروسته ایوب خان ژر کندهار ته رانه غلی بلکې ډېر وځنډېدی چې دې کار د ناکامۍ سره مخامخ کړ. د اگسټ پر ۱۶ ئې پر کندهار سخته حمله وکړه او برتانویانو ته ئې ډیر تلفات واړول، آن د هغوی تکړه قوماندان (جنرال بروک) ئې ووژی خو ښار ئې و نه نیوی. دا د میوند تر سوبې وروسته د ایوب خان لومړنۍ بدمرغي وګڼل سوه. ده وروسته سېنټ جان ته یو خط ولیږی چې داسې غوښتنه ئې ځنې وکړه: "زما ښکاره هدف دا دئ چې د برتانوي حکومت هغه لطف او مهرباني چې د مرحوم امیر سره ئې لرله، زما سره هم وسي". البته د مرحوم امیر څخه ئې مطلب خپل پلار امیر شېرعلي خان وو. خو انګرېزانو ده ته زړه نه نېردې کاوه او ځني بېرېدل.

دا لا څه، جنرال رابرټس د کابل څخه د لسو زرو پوځیانو په مشرۍ د ایوب خان د ځپلو او ماتولو په غرض ۳۱۵ میله واټن په صرف ۲۲ ورځو کي طی کړ څو چي د اګسټ پر ۳۱ راورسېد او په سبا یعني د سپټمبر پر لومړۍ نېټه ئې د بابا ولي، پیر پایمال او چهل دختران په حصو کي د ایوب خان پوځ ته ماته ورکړه. د ده تکړه قوماندان (سردار عبدالله خان ولدِ سردار سلطان احمد خان) او نور تکړه ملګري ئې ووژل سول څو چي دی هم مجبوراً هرات ته وتښتېد. د ده سره په دې تګ کي د ده میره یعني د ولیعهد عبدالله جان مور، د هغې لور او زوم (سردار محمد هاشم) او د امیر شېرعلی خان د کورنۍ نور غړي چي په کندهار کي د ایوب خان سره یو ځای سوی ول، ملګري ول. دا د ایوب خان دوهمه بدمرغي آن بربادي وګڼل سوه. برتانویانو جنرال رابرټس ډېر ونازاوه. ډول ډول لقبونه، انعامونه، اکرامونه او مډالونه ئې وروبخښل. آن ملِکې د ده آس او سپي ته هم جنګی مډالونه ورکړل. خو دا هر څه صرف د ځانو د خوشحالولو له پاره ول او د میوند د فتحي بدنامي او بې حیثیتي ئې په هیځ ډول نه سوه پټولای. دې شکست ایوب خان پوه کړ چي د انګرېزانو سره یوازي په وچو احساساتو سره ډغري نه سی وهلای، بلکي انعطاف او دیپلوماسۍ ته هم اړتیا لري. نو هغه وو چي د ۱۸۸۱ په فبروري کي ئې کندهار ته خپل دوه استاځي (سردار عبدالله خان ناصري او عمر جان صاحبزاده) ولېږل، تر څو هلته د سیاسي چارواکي (سېنټ جان) سره ووینې او ورته ووایي چي دی د خپل ورور امیر محمد یعقوب خان ځای ناستی دئ او کندهار باید ده ته وسپارل سي. خو سېنټ جان پسله ډېر انتظاره هغوی ته وویل چي موږ کندهار امیر عبدالرحمن ته سپارو او د

هغه سره مو خبري او فیصله هم کړې ده، نو ایوب خان دي د هغه سره جوړ راسي. دا ځکه چې موږ د افغانستان څخه وزو او عبدالرحمن خان د هیواد واکمن دئ. هیئت چې مأیوسه هرات ته ستون سو، نو ایوب خان وغوښته چې عبدالرحمن خان ته سبق ورکړي.

په هر حال، عبدالرحمن خان ته د اپریل پر ۱۶ کندهار وسپارل سو او انگریزان پر ۲۷ د افغانستان څخه ووتل او په دې ډول د انگریز – افغان دوهمه جگړه پای ته ورسېده. خو ایوب خان وغوښته چې (دا ځل د امیر عبدالرحمن پر خلاف) رامخته سي او کندهار ونیسي. هغه د هرات څخه را وخوځېد او کندهار ته نږدې د امیر څلور کنډکونه ورواووښتل څو چې د جون په نیمایي کي ئې کندهار بې له کوم خاص مقاومت څخه ونیوی. خو امیر د ۱۲۰۰۰ ښه وسله وال پوځ سره کندهار ته راغی او د سپټمبر پر ۲۲ ئې ایوب خان ځکه مات کړ چې نوموړو څلورو کنډکونو بغاوت وکړ. نو هغه وو چې ایوب خان بیرته هرات ته وتښتېد. دا د ده درېیمه بدمرغي گڼل کېږي.

دا لا څه، امیر مخکي له دې چې کندهار ته را روان سي، د تاشقرغان والي (جنرال عبدالقدوس) ته ئې هدایت کړی وو چې هرات ته وخوځي او هغه د امیر له پاره ونیسي، ځکه د ایوب خان ټول پوځ کندهار ته راغلی او هرات خالي وو. هغه هم همداسي وکړه او د اکتوبر پر دوهمه ئې هرات بې له کوم خاص مقاومت څخه ونیوی. نو کله چې ایوب خان مات سو او مخ پر هرات روان وو، پر لاري په سبزوار کي خبر ورته راغی چې امیر ته وفاداره پوځیان د شا له خوا هرات ته راغلي او هغه ئې نیولی دئ، نو ډېر خپه سو او مجبوراً مشهد ته ولاړ او د جلا وطنۍ په غېږ ورغی. دا د ایوب خان څلورمه بدمرغي ده چې د ده سیاسي رکود او سقوط ئې پایله سوه. ایوب خان وغوښته چې له ایرانه بخارا ته وخوځي مگر د یو لړ ستونزو او خنډونو له امله مجبور سو چې په ایران کي شپېږ کاله پناهنده سي. همدا علت دئ چې یو مشهور ایراني روحاني شخصیت (حاجي عبدالحسین شاه) ایوب خان ته خبرداری ورکړی وو چې ایران ته ئې سفر یوه داسي تلکه (لومه) ده چې بیا ور څخه وتل گران دي.

ایوب خان غوښته چې افغاني پولي ته نږدې یعني په مشهد کي واوسېږي خو ایراني قاجار واکمن د برتانیې د فشار له امله هغه په تهران کي ایسار کړی وو، وروسته ئې کوچان ته ولېږی چې د روسیې د انتقادونو سره مخامخ سو. ایوب خان په ۱۸۸۷ کي په پټه مشهد ته راغی تر څو افغانستان ته داخل سي

(ځکه په هرات کي دوو ليواوو امير ته بغاوت کړی وو او ايوب خان ئې مرستي ته وربللی وو) . خو امير ته دا اطلاع رسېدلې وه او هغه د مقابلې له پاره د دوه نيم زره آس سپرو يو تکړه پوځ ورلېږلی وو چي هغه د ده مخه ډب کړه او ځکه نو دی بيرته مشهد ته پر شا سو . دا د ايوب خان پنځمه بدمرغي ده چي نور ئې نو وسله وال مقاومت هم پای ته ورسېد.

د ايوب خان خوځښتونو برتانوی هند ډېر په عذاب کړ ځو چي دوې طرحی ئې جوړي کړې: لومړی دا چي ايوب خان او ټول ملګري به يې په هندوستان کي بې ځايه کوي، دوهم دا چي د ځينو مشهورو مشرانو په رابېلولو سره به ئې غورځنګ دړي وړي کوي. خو کله چي ايوب خان په اکتوبر کي مجبوراً پر شاتګ وکړ نو انعطاف او نرمښت ئې غوره کړ او د برتانويانو سره په هند کي د استوګني له پاره موافقې ته ورسېد.

د دې فشارونو او جنجالونو له امله په مشهد کي برتانوي کونسل (بريد جنرال مک لين) تر يو لړ خبرو اترو وروسته د سردار ايوب خان سره يو موافقت ليک امضا کړ چي د هغه له مخي هند ته «د انګلستان د درانه او عزتمن ميلمه» په حيث روان سو. دا موافقت ليک ډېر پټ ساتل کېدی، خو آوازې خپرې سوې چي د سردار ايوب خان سره ژمنه سوې ده چي د امير عبدالرحمن خان سره به د برتانوي هند د اړيکو د خراب تيا او يا د هغه په مړينه سره دی تخت ته رسوي. ښايي دا انګېرنه او ادعا غلطه وي، خو انګرېزان د خپلي ديپلوماسۍ په برکت وتوانېدل چي په يوه تير دوه نښانه ووهي، يعني يو خو ايوب خان د ځان سره نظربند وساتي او بل دا چي د اړتيا پر مهال ئې په خپله ګټه (او د امير پر خلاف) وکاروي. نو ځکه هغوی تسکين او ښېغمه سول او خپلي پولي ئې ګام پر ګام د افغانستان د خاوري دننه ته په راځکولو کړې او امير عبدالرحمن خان ئې مجبور کړ چي د ډيورنډ تړون ورسره لاسليک کړي، که نه ايوب خان ئې د يو تهديد په حيث ورته ساتلی وو!

په هر صورت، ايوب خان د خپلو ملګرو، سرېو، ښځو او کوچنيانو سره چي ټول ۸۱۴ تنه ښوول سوي، هند ته پر لار باندي بغداد ته ورسېدل چي د بصرې ځخه د دوو بېړيو په ذريعه د ۱۸۸۸ د مې پر شپږمه کراچي ته ورسېدل. د هغوی له پاره په راولپنډۍ کي د استوګني ترتيبات نيول سوي ول چي د دوبي (اوړی) وخت به ئې په مري کي تېراوه.

وروسته د کراچي ځخه په دوو اورګاډو کي مري ته روان سول چي يوه

غزنۍ سیمه ده او په ژمي کي راولپنډۍ ته راغلل. د سرادر له پاره د میاشتي اته زره روپۍ او ملګرو ته ئې د حیثیت او رتبې له مخي د سړي پر سر د ۱۸ څخه تر ۱۲۰۰ روپیو پوری مدد معاش وټاکل سو. د وخت په تیرېدو سره دوی اړ ول چي لویي کورنۍ په کوچنیو معاشونو سره وچلوي. په دې ډول نو دغو خلکو د غربت او لتي ژوند تېراوه چي وخت ئې په بې ځایه خبرو، چټي بحثونو او غیبت کولو سره له لاسه ورکاوه. ایوب خان چي د پالني له پاره یو لوی غولی (انګړ)، څلور مېرمني، څه کم شل اولادونه او ښه ډېري خدمت ګاراني ور د غاړي وې، خپل اکثره وخت په ننبه ویشتلو د هوسیو پر ښکار، آس سپرلۍ، فوټبال لیدلو او یا هم په خپل حرم سرای کي تېراوه.

یوه ورځ چي ئې کله په غولي کي قدم واهه، پر لوښو باندي راغی چي په ناوکیو ئې لوبی کولې. یوه ئې راولاړه سوه او د ده د کوټ په نیولو ئې داسي ورته وویل: «بابا! هله ما ته زما د نوو واده سوو ناوکیو مخپېټک راکړه». سردار هم لاس جېب ته کړ او د سلو روپیو یو لوټ ئې راوکیښ او خپلي لور ته ئې په موسکا سره ورکړ.

امیر عبدالرحمن په دې قصه تر خبرېدو وروسته ایوب خان ته په خپل لاس لیکل سوي یو خط کي ده ته د دې هسي ژوند په هکله د پېغور په ترڅ کي داسي وویل: «زما ګرانه د اکا زویه! زه د دې خبري په اورېدو هېښ سومه چي د میوند فاتح دونه ټیټ راغلی دئ چي خپل ګران وخت د ناوکیو په ودونو تېروي».

کله چي انګرېزانو (د ۱۸۷۹ د مې پر ۲۶) پر امیر محمد یعقوب خان باندي د ګندمک معاهده وترپله او بیا یې (د ۱۸۹۳ د نوامبر پر ۱۲) پر امیر عبدالرحمن خان باندی د ډیورند معاهده پسي وترپله او په دې ډول افغانستان دوه ځله قیچي او نیمه خوا سو، نو سردار ایوب خان به ډېر ځورېدی او زړه ئې خوړی.

سردار ایوب خان به د برتانوي افسرانو سره ډېر دوستانه چلند لاره او د هغوی سره به ئې په آزادۍ سره پر پوځي مسألو خبري کولې. هغوی د ده له ښه تحلیل او برداشت څخه اغېزمن ول او پر ځینو مهمو مسألو به ئې د ده نظر پوښتی.

د ۱۹۰۰ کال په ډسمبر کي ایوب خان په دهرادون کي د خپل مشر ورور امیر محمد یعقوب خان لیدو ته ورغی. دا تر ۲۷ کالو وروسته د دوو ورونو لومړنۍ او وروستۍ لیدنه وه. د ۱۹۰۱ په اکتوبر کي امیر عبدالرحمن په کابل کي مړ سو

او زوی ئې حبیب الله خان پاچا سو چي ډېر نرم خویه انسان وو. هغه ټولو مخالفینو ته عامه بخښنه اعلان کړه چي له امله ئې د ایوب خان ګڼ شمېر ملګري بیرته کابل ته ولاړل او ایوب خان نور نو پر میدان یوازي پاته او پوه سو چي دریغ ئې د یو سیاسي بندي غوندي دئ چي مطلقاً د برتانویانو په اختیار کي شپې سبا کوي.

وروسته د امیر حبیب الله په غوښتنه انګریزانو درمسالې ته ولېږی او تر ۲۳ ورځو وروسته ئې د هیمالیا د غرنیو سیمو په (دل هوسي) کي استوګنه ورکړه، څو چي د ۱۹۰۲ په د اکتوبر پر درېیمه لاهور ته ولاړ او د ژوند تر پایه هلته واوسېدی.

امیر حبیب الله خان د برتانوي مقاماتو د پرله پسې غوښتنو له امله د ۱۹۰۶ په وروستیو کی هند ته په سفر روان سو. د ده سره ۱۱۰۰ افسران او ساتندویان ملګري ول چي د ۱۹۰۷ د جنوری پر دوهمه د خیبر درې لوېدیځی څوکي لنډي کوتل ته ورسېد او د برتانوي چارواکو له خوا ئې تود او پرتمین هر کلی وسو.

ایوب خان دا مهال په لاهور کي بېکاره شپې ورځي تېرولې. انګرېزان ځکه په وهم کي ول چي مبادا ایوب خان د دې خلا څخه استفاده و نه کړي او افغانستان ته داخل نه سي. انګرېزان چي دی ئې تر بشپړي څارني لاندي وو، ښه پوهېدل چي دی یو وطنپرست شخص او د انګرېزانو مخالف دي، نو مسلسله هڅه ئې کوله چي هغه افغانستان ته داخل نه سي او امیر عبدالرحمن ته خطر ایجاد نه کړي. له دې نه علاوه، د امیر سفیرانو هم ایوب خان تر نظر لاندي نیولی وو او د ده هر عمل او قدم ئې تعقیباوه او کابل ته ئې راپور ورکاوه.

برتانویانو د دې له پاره چي له یوې خوا د ایوب خان پام بل لور ته واړوي، او د بلي خوا امیر حبیب الله خان خوشحاله کړي، ایوب خان ته ئې بلنه ورکړه چي د تفریح له پاره انګلستان یا جاپان ته سفر وکړي. ایوب خان د یو هیوادپال انسان په توګه هره ورځ د جاپان خبرونو ته متوجه وو. هغه په دې ښه پوهېدی چي افغانستان په دوو جګړو کي د نړۍ ستر ځواک یعنی برتانیې ته سخته ماته ورکړې وه او کټ مټ جاپان بیا دوه کاله مخکي (یعني په ۱۹۰۵ کي) تزاري روسیې ته همداسي ماته ورکړې وه. نو ځکه ئې جاپان غوره کړ تر څو د هغه هیواد د مشرانو او جنرالانو سره وګوري. که څه هم جاپان ته د ایوب خان د تګ هڅونه د امیر حبیب الله خان د سلطنت د ساتني او بقا په خاطر وه، لاکن امیر

حبیب الله خان په دې اقدام خواشینی سو او د جنوري پر نهمه ئې «سر لوئیس ډین» ته ولیکل چې جاپان ته د ایوب خان دوه میاشتنی سفر د ده نظریو ته په کتنه سره چې برتانوی حکومت هم ښه په خبر دئ، زما د حیرانتیا سبب سو. خو امیر بیا هم په دې لیک کې هغه احتمالي خطر هم یاد کړی دئ چې د ده د غیابت پر مهال د ایوب خان له خوا ممکن وو.

دا لا څه، د فبروری پر ۲۱ د جاپان څخه برتانوي مامورینو د انګلستان خارجه وزیر (سر اډوارډ ګري) ته ولیکل چې په افغانستان کې د امیر د غیابت پر مهال هلته په هند کې د سردار ایوب خان شتون یو لوی مشکل دئ او که نوموړی سردار د دې موقع څخه مستفید سي او افغانستان ته ننوزي، نو برتانیې ته به لویې ستونزې ایجاد کړي. همدا علت وو چې د برتانوي هند حکومت وپتېیله چې ایوب خان باید جاپان ته سفر وکړي تر څو د هند او افغانستان دواړو څخه څه موده لیري وي او برتانوي مقامات په آرامی او بېغمی سره د افغان امیر په سفر او مېلمه پالنه بوخت وي.

د دې تاریخي لیک متن او جاپان ته د ایوب خان د تګ هڅونه ښیي چې تر څو ایوب خان ژوندی وو، امیر حبیب الله خان او برتانویان د هغه څخه بیرېدل چې مبادا افغانستان ته داخل نه سي.

په هر صورت، ایوب خان د خپل یو شمېر ملګرو او برتانوي سیاسي افسر (ډګروال وایټ) په ملګرتیا د بمبئې څخه په یوه بخاري بېړۍ کې د سینګاپور پر لور وخوځېد. وروسته هانګ کانګ ته ورسېد. له هغه ځایه ایوب خان او ملګري ئې په یوه جاپانی بېړۍ کې مخ پر جاپان روان سول. جاپانیانو د ایوب خان تود هرکلی وکړ او خپرونو «د میوند فاتح» په ستاینو او پالنو سره ونازاوه.

ایوب خان د ځینو جاپاني اتلانو او فاتحانو سره وکتل چې په هغو کې د روسیې سره د جګړې اوځار قهرمانان جنرال (توګو)، مارشال (نوګي)، مارشال (تیرا اوچي) چې وروسته د جنګ وزیر سو او پخوانیی جاپانی چارواکی (اوکوما) هم شامل ول. خو برتانوي مقاماتو اجازه ورنه کړه چې د جاپان د امپراتور (متسو هیتو) سره وګوري.

ایوب خان په دې سفر کې د روسیې سره د ۱۹۰۵ کال د جګړې د زخمیانو پوښتني او عیادت ته هم ورغی او هغوی ته ئې اعانې او تحفې ورکړې.

په جاپان کې د استوګني پر مهال ایوب خان او ملګرو ئې په جګړه کې د استعمال سوي جنګي بېړۍ (توګو) او تر ټولو پیاوړي جنګیالي (ساتسوما) په لیدلو سره خوښي وښودله. برتانوي

بحري او پوځي اتشو (ډگروال هيوم) او (تورن ډيلمر) په دوی فابريکو، د ببړيو کارځايونو او نورو ښه ځايونو ته بېول.

ايوب خان او ملگري ئې په هره برخه کي د جاپان د دومره چټک پرمختگ څخه اغېزمن سول. يوه ورځ ئې د جاپاني شاهي گارډ په ليدلو چي ده ته ئې د خپل هيواد نيکمرغه ورځی ورپه ياد کړې، ستر گي له اوښکو ډکي سوې.

کله چي د ۱۹۰۷ د مارچ په وروستيو کي امير حبيب الله خان خپل سفر پای ته ورساوه او د افغانستان پر خوا روان سو، نو ايوب خان ته هم اجازه ورکړه سوه چي هند ته راستون سي. په دې ډول هغه د مارچ پر ۱۴ د کوبي د بندر له خوا په (اس. اس. مانيل) بېړۍ کي بير ته هند ته راوستل سو.

په هرحال، جاپان ته دغه سفر ايوب خان دونه ډېر وځوراوه چي لاهور ته په راستنېدو ئې بې له ځنډه د مرستيال واکمن څخه وغوښته چي د ۱۸۸۷ کال لوزنامه فسخ کړي او بيرته مشهد يعني هغه ځای ته د تگ اجازه ورکړي چي ورڅخه راوستل سوی وو. متأسفانه برتانويانو د ده پر غوښتنه غوږ کوڼ واچاوه او هڅه ئې وکړه چي هغه د معاش په ډېروالي او کوچنيانو ته ئې د ورپا زده کړي د برابرولو په خبرو خوشحاله کړي چي گواکي د تعليم تر بشپړولو وروسته به ښې وظيفې ورکړي.

خو ايوب خان دا وړانديز و نه مانه. هغه دونه ټيټ نه وو چي په داسی وړوکو شيانو پسي ئې سر گرځولای. ده خوآن د خپل معاش په زياتېدنه کي سره له دې چي پوروړی وو، هم ځُرت و نه واهه. ځکه، برتانوي هند ته د پيسو گټلو او ځمکو تر لاسه کولو له پاره نه بلکي د يوې موقع موندلو له پاره راغلی وو تر څو لوی هدف يعني پاچهي تر لاسه کړي. خو دا د ده ځاني آرمان وو، حال دا چي برتانويانو د يو سياسي بندي په حيث يوازي د خپلو گټو په خاطر ساتلی وو. تاريخ پوهان واي چي: «سردار ايوب خان د ډېرو ډگرونو جنگيالی وو، خو د خپل سيال امير عبدالرحمن خان غوندي ليري کتنه، چل ول او لاري چاري يې زده نه وې. نوموړی يو عملي سړی نه بلکي د يو نظرياتي په حيث و اوسېد او مړ سو. ليري راتلونکي ته ئې نظر نه سو اچولای چي په دې توگه ئې ډېر طلايي چانسونه له لاسه ورکړل. ده د ژوند په وروستيو کي خپلي تېروتني درک کړې، خو نور نو ډېر ناوخته وو».

د ايوب خان ژوندون د سوبو، ناکاميو، خوښيو، بدمرغيو او غمونو يوه عجيبه مجموعه ده. يوه ورځ لوی لښکر ورپسي روان وي او بله ورځ ئې په پردي هيواد، غليم هيواد او مات کړي هيواد

کي پناه اخیستې وي.

ایوب خان د ژوند په وروستیو کي ډېر خواشینی او تر دماغي بوج لاندي وو چي څو مهم علتونه ئې دادي:

لومړی: افغانستان ته ئې ستنېدل ورځ په ورځ ناشوني کېدی تر څو د خپل پلار تخت ئې بیرته گټلی وای.

دوهم: د خپلو بېلابېلو ماندینو او زامنو تر منځ تربگنیو او بد نیتیو د ده ژوند ورځ په ورځ تریخاوه.

درېیم: د ده د کورنۍ ډېرېدونکی خرڅ وو چي نه ئې سو کولای په خپل لږ معاش ئې پوره کړی وای.

همدا ظاهري علتونه ول چي د میوند فاتح د ۱۹۱۴ کال د اپریل پر اوومه د زړه د حملې ښکار سو. خو نور بیا د توطیې خبره کوي او وایي چي د ده یوې خادمي چي (گلابي) نومېده، ده ته زهر ورکړي وه او بیا ئې خفه کړی وو تر څو چي ساه ئې وختله. دا خبره څکه کېږی چي د ده پر غاړه د گوتو نخښنه واضحاً معلومېدله. خو هر څه چي وو، که د انگرېزانو توطیه وي یا کورنۍ دسیسه او یا هم طبیعي مړینه وي، سردار ایوب خان د خپل وصیت سره سم (چي ویلي ئې وو زما جسد په افغانستان یا پښتونخوا کي خاورو ته وسپارئ) د پېښور د شیخ حبیب په هدیره کي ښخ سو. الله دي ئې د ټولو مسلمانانو سره مرحوم او مغفور ولري.

ایوب خان یوولس زامن او شپږ لوڼي پرېښوولې. یو زوی ئې په لاهور کي او نور د هند په الله آباد کي اوسېدل، ښایي اوس هم د هغوی اولادونه همالته استوگن وي.

## اړونده مأخذونه:


۱. د میوند فاتح؛ محمد علي میوندي، ژباړن: عبدالنافع ثنا، کندهار، ۱۳۸۷ لمریز.
۲. افتخاراتِ افغان؛ عبدالحکیم طبیبي، کابل، ۱۳۵۲ شمسي.
۳. افغانستان در قرن نزده؛ سید قاسم رشتیا، کابل، ۱۳۴۶ شمسي.
۴. هند او افغانستان، ۱۸۷۶ - ۱۹۰۷؛ ډي. پي. سینگال، نوی ډیلی، ۱۹۶۲.
۵. افغانستان در پنج قرن اخیر؛ میر محمد صدیق فرهنگ، مشهد-ایران، ۱۳۷۱ شمسي.
۶. انگلستان د افغانستان پر ضد؛ نفتولا خالفین؛ پښتو ژباړه: شاه محمود نبک، ماسکو، ۱۹۸۰.


***

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د علي محمد مخلص د ژوند سیاسي حالات

د علي محمد مخلص پلرنۍ کورنۍ او ورسره روښانیان د هندوستان د گورگاني پاچا - نورالدین سلیم جهانگیر (۱۰۱۴هـ ق/۱۶۰۵ع - ۱۰۳۷هـ ق/ ۱۶۲۸ع ) د پاچهۍ پر مهال (په ۱۰۲۵هـق/۱۶۱۶ع ) د روه له غرو او مېرو څخه و هندوستان ته ولاړل. جهانگیر هم خپلو اسلافو غوندي د مغولي امپراتورۍ په بېلابېلو برخو کې د خلگو له راز راز مخالفتو او مقاومتو سره مخامخ ؤ. د پاچهۍ په اول کال يې په متې وکړای سول، د سیستان د واکمن په کومک د صفوي لښکرو هغه برید، په هرات کې شنډ کړي، چې مشري يې د محمد حسین شاملو پر غاړه وه. کندهار چې د يوې مهمې ستراتیژیکي سیمې په توگه له ډېره وخته د صفوي او مغولي امپراتوریيو د جگړو او مقابلو ناارامه ډگر ؤ، د جهانگیر په پاچهۍ کې یو وار بیا د مغولي لښکرو په منگولو کښېوزي؛ او تر اوولسو کالو پوري يې په خپل واک کې ساتي. د صفوي شاه عباس په پاچهۍ (۱۰۳۱هـق/۱۶۲۱ع) کې د دې سیمې واکمني بیرته د صفوي لښکرو و لاس ته لوېږي[۱]. څو کاله د صفوي یرغلگرو فرمان چلېږي. تر څو چې د شاه جهان (۱۰۳۷هـق/ ۱۶۲۸ع - ۱۰۶۸هـق/ ۱۶۵۸ع ) و دربار ته د کندهار د صفوي واکمن، علیمردان خان، تر تسلیمۍ وروسته دا ښار یو پلا بیا د مغولي امپراتورۍ د پراخ قلمرو په یوه برخه اوړي[۲].

مغولي واکمنانو ته پر کندهار سربېره د اوسني افغانستان په زیاترو برخو کې اورونه بل وه. د افغانستان په شمالي سیمو کې د بلخ د حاکم، نذر محمد خان، او د روه په غرو او داگو کې د روښاني غورځنگ له پیاوړي مقاومته ارام نه لاره. د روښاني غورځنگ مشر، جلال الدین، د خپلو مغولي ضد مبارزو په لړ کې، د جهانگیر تر پاچهۍ څو کاله مخکې، د بلخ له اوزبک مشر، عبدالله خان، څخه د مرستې اخیستو په نیامت دوه ټپاله و هغې سیمې ته سفر کړئ ؤ[۳].

د جلال الدین تر شهادت وروسته د شېخ عمر بن پیر روښان زوی، احداد، د روښاني غورځنگ د مشرتابه واگې په لاس کې واخیستې؛ او د پښتنو خپلواکۍ غوښتونکي تحریک تر هر بل وخت په ډېره مړانه او زړورتیا و خپلو مغولي ضد

مبارزو او حماسو ته دوام ورکاوه. څه
موده وروسته نابېره د روښاني غورځنګ
په مشرتابه کي د اختلافو او کدورتو
لمبې بلې سوې. په نتیجه کي د جلال
الدين د مشر زوی – الله داد (رشيد خان)
په مشرۍ د روښانيانو د سياسي –
نظامي مخورو يوه غښتلې او ځواکمنه
ډله د روښاني غورځنګ له ليکو څخه
جلا او د جهانګير له دربار سره د روغي
جوړي په مخسد و هندوستان ته ولاړه.

که څه هم د روښانيانو دې
خپلمنځي نفاق و شقاق د افغانانو د
خپلواکۍ غوښتونکي غورځنګ پر اتلوالو
مبارزو او حماسو ناوړه اغېزه وښندله؛ خو
سره له هغه هم د مقاومت په مورچل کي
پاتو روښانيانو د هر بل وخت په شان د
خپل ننګيالي او پر شا نه تلوونکي مشر،
احداد، په لارښوونه د جهانګير و سيمه
ييزو حاکمانو ته د سر په کاسه کي اوبه
ورکولې. د احداد تر نه هېرېدونکي
شهادت وروسته د هغه زوی، عبدالقادر،
د پښتنو د مغولي ضد مبارزې او مقاومت
رپانده بيرغ په خپل لاس کي واخيستئ؛
او د ژوند تر وروستيو سلګيو پوري يې
په مړانه او غښتلواله وساتئ. په
خواشينۍ سره د عبدالقادر تر مړيني
وروسته د مغولي استعمار پر ضد د
روښاني غورځنګ د بري هيلي له خاورو
سره خاوري سوې. دا مهال د جهانګير
دربار يوازې په هندوستان کي د شازاده
خوُرَم / خُرم (شاه جهان) له ښورښ سره
مخامخ ؤ.

مغولي امپراتوري د شاه جهان د
پاچهۍ په دوره کي، د کندهار د
ستراتيژيکي سيمي په شاوخوا کي د
صفوي لښکرو له پرله پسې يرغلو، د
افغانستان په شمال کي د نذرمحمد
خان د اولادو او د روه په ځينو سيمو کي
د يوسفزو له غښتلي مقاومت سره مخامخ
وه. د دې تر څنګ مغولي دولت دا مهال
په هندوستان کي د مغولي شازادګانو له
وخت و ناوخت ښورښو، د هند په جنوب
کي د پرتګاليانو له زياتېدونکي نفوذ او د
بهمني سلطنت له خپلواکۍ ساتونکي
مقاومت سره مقابله کوله. اکبر پاچا د
دې خطرو د شنډولو په خاطر اوږده
کلونه مخکي په (۱۵۶۴ع) کال د دکن د
نيولو کوښښونه شرو (شروع) کړل؛ خو
د خپلي پراختيا غوښتونکي سياسي-
نظامي ستراتېژۍ په عملي کولو بريالی
نه سو.

که څه هم بهمني سلطنت د
خارجي فشارو او داخلي تضادو په سَوَب
تر پايه مقاومت و نه کړای سوای، خو د
پينځو ايالتو واکمنانو يې د هند د مرکزي
دولت د کمزورۍ له کبله و کړای سول،
چي په احمدنګر[۴]، بيجاپور[۵]، بيرار[۶]،
ګولکونډه[۷] او بيدر[۸] کي خپلواک
دولتونه جوړ کي. په بيجاپور کي عادل
شاهانو، په ګولکونډه کي قطب شاهانو،
په احمدنګر کي نظام شاهانو، په بيدر
کي بريد شاهانو او په بيرار کي عماد
شاهانو د پاچهۍ بيرغونه پورته کړل. د
بيرار او بيدر کوچنييو خپلواکو دولتو تر

څه وخته خپله خپلواکي ساتلې وه؛ خو وروسته د ګاونډيو پاچهيو له خوا په خپله خاوره کي مدغم سول. بيرار په (۱۵۷۴ع) کي د احمدنګر د واکمنانو او بيدر په (۱۶۱۹ع) د بيجاپور سلطنت د حکمرانانو له خوا و نيول سو(۹). په دې ډول، د بهمني سلطنت له تجزيې څخه د را ټوکېدلو پينځو خپلواکو دولتو په ډله کي د ګولکونډې، احمدنګر او بيجاپور خپلواک دولتونه پاته سول، چي له هغو څخه د بيجاپور او احمدنګر پاچهيو اوږده موده د دکن په سياسي، اجتماعي او فرهنګي بهير کي ستر او اغېزمن رول لاره. د هندي مؤرخ، ډاکټر ج. ن. چوهدري، په عقيده دا مهال د دکن د سياست تر ټولو مهمه ځانګړتيا په دغه سيمه کي د اقتدار او برلاسي په خاطر د احمدنګر، بيجاپور او ګولکونډې د واکمنانو تر منځ سختي سيالۍ او همېشني جنګونه دي، چي د سيمي امنيت او سوکالي يې له جدي ګوابنو او خطرو سره مخامخ کړې وه. البته، د بيرار او بيدر کوچني دولتونه هم له سياليو او جنګ جګړو څخه خوندي نه وه. دې ورو دولتو د خپلو سياسي ګټو له مخي، کله له يوه او کله له بل پرغلګر دولت سره لاسونه يو کول. د بيجاپور، احمدنګر او ګولکونډې دولتو به هم هر يوه د خپلو ګاونډيو سيالانو او دوښمنانو د ځپلو او کمزوري کولو په مخسد د هند د جنوب د «ويجايانګارا» له هندو سلطنت څخه د مرستي غوښتنه کوله. دا همېشنۍ حالت لومړی پلا په (۱۵۶۴ع) کي، هغه مهال واوښتئ چي د بيجاپور، احمدنګر، ګولکونډې او بيدر پاچهانو د ويجايانګارا پر ضد لاسونه سره يو کړل؛ او د «ټاليکوټي» هندو سلطنت پر خلاف يې په ګډه جګړه وکړه(۱۰).

د دکن د خپلواکو دولتو پاچهانو د هندوستان د مغولي امپراتورۍ په وړاندي د فرمان او عصيان له سياست څخه کار اخيستئ. سياسي او امنيتي حالاتو ته په کتو سره به يې کله کله د مغولي امپراتورانو ته د اطاعت سر ښوراوه؛ او کله کله به يې د هغو له کمزورۍ څخه په استفاده، په سرکښۍ او نافرمانۍ لاس پوري کاوه(۱۱).

زموږ عارف شاعر، علي محمد مخلص، د خپل ژوندانه څه موده له الله داد (رشيد خان) سره په «برهانپور»، «اورنګ آباد»، «ناندېړ» او «تلنګانه» کي تېره کړې وه. « حالنامه» په دکن کي د ميرزا خان انصاري او د هغه د زوی، عبدالحکيم، د شهادت کيسه او د احداد له مېرمني، بي بي علايي، سره د علي محمد مخلص د هغه ديدار تفصيل راوړئ دئ، چي له رشيد آباد څخه د عزيزانو د ليدو په خاطر و دکن ته تللې وه(۱۲). په «حالنامه» کي د دکن د سياسي – امنيتي حالاتو او په ګولکونډه کي د رشيد خان د ورور، هاديداد خان، د مړاني او سرښندني جريان هم بيان سوئ دئ.

د دکن په بېلابېلو سيمو کي پر ټولو سياسي شخړو او ناارامييو سربېره،

علمي او فرهنګي فعالیتونه هم په خورا زور کي روان وه، چي ښېله شکه يې د خوان مخلص پر ادبي، علمي او عرفاني شخصیت هم ژوره اغېزه ښندله.

د شاه جهان د پاچهۍ په وروستیيو کلونو کي د مغولي شازادګانو تر منځ شخړو او جګړو د مغولي امپراتورۍ سیاسي – امنیتي حالات نور هم پسي خړپړ کړل، تر څو چي محی الدین اورنګزېب عالمګیر (۱۰۶۸هـ ق/ ۱۶۱۸ع – ۱۱۱۸هـ ق/ ۱۷۰۷ع) بالاخره په مکر او زور سره وکړای سول د پلار پر تخت خېته واچیي. اورنګزېب که د خپل پراختیا غوښتونکي ظالمانه سیاست په پر مخ بېولو سره دا وس وموندئ، چي د دکن پر زیاترو خپلواکو دولتو د خپلي توري واکمنۍ لمن وغوړيي، د روه په لوړو غرو او پراخو ډاګو کي د روښاني غورځنګ تر ناکامۍ او انحلال وروسته د دریا خان، ایمل خان او خوشال خان خټک په مشرۍ د پښتنو د ازادۍ بخښوونکو مبارزو له داسي سرکښه توپان سره مخامخ سو، چي اوږده کلونه يې د ده او راتلونکو مغولي حکمرانانو خوب حرام کړئ ؤ. د هندوانو او سیکانو په مقابل کي د اورنګزېب د ځوروني او تبعیض ظالمانه سیاستونه، هغه بل عامل ؤ چي د هندوستان په بېلو بېلو ښارو او سیمو کي د سیاسي بې ثباتۍ او مخالفتو څپې را وپارولې.

«حالنامه» تر (۱۰۶۹هـ ق) کال پوري د پښتنو سیاسي، اجتماعي او فرهنګي حالات بیانيي. په تاریخي لحاظ دا هغه مهال دئ، چي فقط یو کال دمخه په هندوستان کي د اورنګزېب د سیاسي او مذهبي اختناق نه څلوېښت (۴۹) کلنه دوره پیل سوې وه.

په ډېري خواشینۍ او بدمرغۍ سره د روه توریالي اولس د جهانګیر، شاه جهان او اورنګزېب په پاچهیيو کي، چي په واقعیت کي د علي محمد مخلص د ژوند زمانه ده، د قبیله يي نفاق او شقاق بدي ورځي تېرولې. روښانیانو څلور پښته، اویا کاله، د مغولي استعمار او استبداد پر ضد په مړاني او سرښندني سره خپلواکۍ غوښتونکي مبارزې وکړې؛ خو له بده مرغه د مغولي واکمنانو پښتنو مزدورانو او تنخاخورو په خپله هم د هغو په شنډولو او ماتولو کي پراخه برخه واخیسته. دا وخت د خټکو مشر او لوی پښتون شاعر – خوشال خان خټک (۱۰۲۲ – ۱۱۰۰هـ ق) له خپلي ټولي خېلخانې سره د مغولي واکمنانو په چوپړ کي ولاړ ؤ؛ نه یوازي يې د مغولي استعمارګرانو د سر دوعاوي کولې، بلکي په خپل ټول واک او ځواک سره يې د پښتنو د خپلواکۍ غوښتونکو جنګیالو سرونه په توره وهل. د خوشال خان خټک د سواتنامې دا څو بیتونه د دې مدعا روښانه ثبوت دئ:

د مغل د پاره مـــا توري وهـــلې

پښتنو به را ته کړې ډېري ښکنځلې

که ورکزیه که بنګښ او که یوسف دي
دیو هـــمه دمـا د تېغ په تأسف دي
پښـــتانه مې په زرګـــونو دي وژلي
په سرونو به یې خره، غـــوایه ولشلي
لا تر اوسه د ســـــرونو یې انبار دئ
په اټک، په پښاور کښې یې منار دئ[۱۳]

کله چې خوشال خان خټک د مغولو پر ضد د مبارزې او مقاومت بیرغ پورته کئ، دا وخت بیا د روښانیانو یوې جلا سوي ډلي لکه الله داد (رشید خان)، میرزا خان انصاري، هادیداد خان، ابوبکر کنداري، اسماعیل کنداري او ځینو نورو تسلیم سوو روښانیانو په هندوستان کي د مغولي پاچهانو د تاج و تخت دپاره توري وهلې. په همدې بیجاپور کي، چي الله داد (رشیدخان)، هادیداد خان، میرزا خان انصاري او د دوی نورو روښاني ملګرو د مغولي دولت په دفاع کي خپلي وینې تویولې، څو کاله وروسته (په ۱۶۸۲ ع / ۱۰۹۳هـ ق کي) د خوشال خان زوی، اشرف خان هجري، د خپلواکۍ غوښتني او نافرمانۍ په ګونا، تر څور لس کلن بند وروسته له نړۍ څخه ستر ګي پټيي. دا او داسي نور بیتونه یې د ښلتانه په اور کي د وریتېدو دردناک داستان بیانیي:

بې وطنه تنها پروت یم په غربت کښې
تن له ما سره همدم د صنم غم دئ[۱۴]

*** *** ***

ښلــــتانه هسي آتش را بانـــدي بل کا
لکه بل کا د بلـــبل پر[۱۵] زړه خـزان اور
په انداز څـــما[۱۶] د ســوز کله پوهیږي
چـــا چه نه دئ آزمــیلئ د هجران اور
که د یار د هجر غــم را باندي نه وی[۱۷]
را ته ســـهل وه ســـــړیو د زندان اور
جـــور هـــونبره طغیان وکړه د سرانو
چه ئې وریت کړ د دکن خلق ودان اور[۱۸]

په دې ترتیب، د پښتني قبیلو تر منځ دې خونړییو دوښمنییو او سیالییو و مغولي استعمارګرانو ته پراخ امکانات برابر کړي وه، چي نه یوازي پر هندوستان، بلکي د افغانانو پر خپلواکه او ویاړلې مېنه هم ظالمانه حکمراني وکي. صفوي یرغلګرو هم د هیواد په لوېدیځه برخه کي د غلجو او ابدالو تر منځ و بېلابېلو دوښمنییو او سیالییو ته په لمن وهلو سره د پښتنو په مقدراتو ډول ډول بازۍ وکړې، تر څو چي د افغانانو زړور او مدبر مشر، میرویس خان هوتک، د دې ویاړلي ټاټوبي د ټولو اوسېدونکو قومو او قبایلو په یوموټي کولو سره د صفوي استعمار مانۍ و نړوله؛ او په تاریخي کندهار کې د یوه پیاوړي ملي او اولسي حکومت تاداو کښېښاوه.

---

یادښتونه او لمنلیکونه:

[۱] حبیبی، تاریخ مختصر افغانستان، ۲ج (کابل: انجمن تاریخ و ادب، اکادیمی افغانستان، ۱۳۴۹) ۲: ۳۴.

[2] قاضي عطاالله خان، د پښتنو تاریخ، دوهم چاپ (پېښور: یونیورستي بُک ایجنسي، ۲۰۰۴)۴۲.

[3] Dr S. Roy,"Akbar," The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People. ۷th Vol. ۲nd ed. General Editor: Dr R.C. Majumdar. Assistant Editors: Dr. J.N. Chaudhuri and S. Chaudhuri. Bombay: Bharatiya Vidya Bhavan, ۱۹۷۴. ۱۵٦.

[4] احمدنګر د خاندېش په جنوب او د بیجاپور په شمال کې پروت ؤ.

[5] بیجاپور د احمدنګر په جنوب، د ویجایانګارا په شمال، د عرب بحیرې په ختیځ او د بیدر او ګلبرګې و لوېدیځ خوا ته پروت ؤ.

[6] بیرار د احمدنګر په شمال- شرقي برخه کې پروت ؤ، چې وروسته د احمدنګر د واکمنانو له خوا ونیول سو.

[7] د ګولکونډې دولت د بیرار په جنوب او د بیدر او ګلبرګې و ختیځ ته پروت ؤ.

[8] بیدر د بیجاپور په شرقي او د احمدنګر په شمال- شرقي برخه کې پروت ؤ؛ او له ګولکونډې سره یې په غرب کې پوله لرله. بیدر په حقیقت کې د دکن درو څواکمنو پاچهیو (بیجاپور، احمدنګر او ګولکونډې) له خوا چاپېر سوئ ؤ.

[9] Dr J.N. Chaudhuri, "Aurangzib, "The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People, ۷th Vol. ۲nd ed. General Editor: Dr R.C. Majumdar. Assistant Editors: Dr. J.N. Chaudhuri and S. Chaudhuri (Bombay: Bharatiya Vidya Bhavan, ۱۹۷۴) ۵.

[10] Chaudhuri ۵.

[11] Prof Abdur Rashid, "Jahangir," The Mughul Empire: The History and Culture of the Indian People, ۷th Vol. ۲nd ed. General Editor: Dr R.C. Majumdar. Assistant Editors: Dr. J.N. Chaudhuri and S. Chaudhuri (Bombay: Bharatiya Vidya Bhavan, ۱۹۷۴)۱٦۱ - ٦۲.

[12] مخلص، حالنامهٔ بایزید روښان ۶۴۵ – ۴۸، ۶۶۴.

[13] خوشال خان خټک، «سواتنامه» د افضل خان بن اشرف خان بن خوشحال خان خټک د تاریخ مرصع یوه برخه، د دوست محمد خان کامل مومند مقدمه، مقابله، تصحیح او نوټونه (پېښور: یونیورستي بؤک ایجنسي، ۱۹۷۴) ۳۲۹.

[14] Henry George Raverty, The Gulshan-i-Roh: being selections, prose and poetical, in the Pushto, or Afghan language (Hertford: Longman & Roberts, ۱۸٦۰) ۱٦۰.

[15] اصل: په.

[16] اصل: څما.

[17] اصل: وي.

[18] Raverty ۱۵٦.

***

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثار احمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

## دیوډور مومسین

(څلرمه برخه)

الماني لیکوال او مؤرخ کرسچین میتیاس دیو ډور مومسین (Christian Matthias Theodor) ته په ۱۹۰۲م کال کي نوبل جایزه ورکړه سوه. د روم تاریخ (The History of Rome) هغه اثر دئ، چي نوموړی ئې د شهرت لوړ مقام ته ورساوه. د هغه پلار پروټسټنټ[1] وزیر وو. مومسین په ۱۸۱۷م کال په شلیسوګ کي پیدا سوی او په اولډیلو[2] کي لوی سوی دئ. هغه د لوړو ادبیاتو بنسټیزه زده کړه د منځیو زده کړو په لوړو صنفونو کي تر لاسه کړه. نوموړي له ۱۸۳۸م څخه تر ۱۸۴۳م پوري په کیل (Kiel) پوهنتون کي د قانون پوهني (Jurisprudence) زده کړه وکړه. دا چي په هغه مهال کي د جرمني د قانون پوهني زده کړه تر ډېره بریده د ایټالوي قانون تر مطالعې پوري محدوده وه، ځکه نو دې مطالعې د هغه پر راتلونکي تحقیقي تمایل اغېز وکړ. په دې برخه کي هغه د قانون پوهني د تاریخي مکتب په بنسټګرو کي په ځانګړي ډول د فریډرک کارل وان سیوګني (Friedrich

(1) د عیسوي مذهب هغه ډله چي پاپان نه مني.

(2) اوس بیډ اولډیلو بلل کېږي.

(Karl Von Savigny) له لیکنو څخه اغېزمن وو. ځکه نو په ډاډ سره ویلای سو، نوموړي چي د تاریخ او قانون تر منځ د نژدېوالي کوم نظر درلود، د هغه اخیستنه ئې د خپلو استادانو د لکچرونو پر ځای له دې لیکنو څخه کړې وه. کله چي هغه د ماسترۍ او ډاکترۍ سندونه واخیستل، نو د ایټالیا د باچا له لوري نوموړي ته یوه تحقیقي دنده ورکړل سوه. مومسین په ایټالیا کي د اوسېدو او تحقیق له پاره له ۱۸۴۴م څخه تر ۱۸۴۷ پوري دغه دنده مخته بوتله. په دې کلونو کي ایټالیا د نوموړي له پاره د دوهم کور حیثیت غوره کړ. همدارنګه د روم د لرغونو اثارو انستیتیوت هم د نوموړي د تحقیق ځای وو. په دې وخت کي مومسین د (Corpus Inscriptionum Latinarum) طرحي ته رسېدلی وو. د دې طرحي هدف دا وو، چي هغو پخوانیو لیکنو ته د منل سویو ژبنیو اصولو سره سم تنظیم او ترتیب ورکړي، چي له پخوا څخه پر ډبرو، اوسپنو او نورو توکو باندي کښل سوي وي. نوموړي د لرغونو آثارو بنسټیزه زده کړه د کیل (Kiel) پوهنتون له ځوان پروفیسر اوټو جاهن (Otto Jahn) څخه ترلاسه کړې وه. هغه ډېر ژر د دې ورتیا او مهارت ترلاسه کړ، چي نقاشۍ او کتیبې ووایي او هغه تعبیر کړي. راتلونکي څو لسیزي مومسین د سن مرینو (San marino) د فاضل سیاستمدار بارتولو میوبور ګیسي (Bartlomeo Borghesi) تر لاربښووني لاندي کار وکړ. هغه د لاتیني ژبي د کتیبو خورا لویه خو بې نظمه زېرمه د ماخذو له پاره د استعمال وړ کړه او په لوموړي ځل د قدیمي نړۍ د ژوند بشپړ تفهیم ممکنه سو. همدا رنګه د دې تر څنګ د ادبي روایت د تفهیم له پاره یوه بشپړونکې وسیله رامنځ ته سوه.

کله چي مومسین له ایټالیا څخه خپل وطن ته ستون سو نو په دې وخت کي د هغه هیواد ورځ تر بلي د اضطراب پر لور روان وو. دا چي نوموړی د شلیسوګ (Schlwswig) اوسېدونکی وو، نو له دې امله هغه د ډنمارک د باچا په اتباعو کي شامل وو، خو نوموړي خپل ځان المانی باله او غوښتل ئې چي په المان کي واوسي. همدا لامل وو، چي



هغه د متحد المان په تمه وو. د هغه د خپلواکۍ ارمان تر دې پورې محدود نه وو، چې الماني ایالتونه یوازې ازاد سي، بلکې هغه د دې تر څنګ د الماني اتباعو له پاره هم د خپلواکۍ غوښتونکی وو، تر څو هغوی خپل ایالتونه له خپلې خوښې سره سم تشکیل کړي. هغه یو روښن فکره سړی وو. له دې امله ئې یوازې جمهوریت د حکومت یو مناسب ډول ګاڼه. همدارنګه هغه د یو قانوني پاچاهي نظام مخالف هم نه وو خو په دې شرط چې یو څوک د قانوني آمریت تر چتر لاندې هغه استعمال نه کړي. هغه د خپل سیاسي ژوند پیل د (Schleswing Holstainische Zeitung) له مدیریت څخه وکړ، خو ژورنالیستیک ژوند د هغه له ذوق سره سم و نه ختی. البته کله چې نوموړی په لیزګ پوهنتون کې د مدني قانون د استاد په توګه غوره سو، نو هغه د ازادې ساه واخیسته. تر دې وروسته تر مرګه پورې د هغه دلچسپي له سیاست سره پاته سوه. د عملي سیاست تر څنګ نوموړی د سیاست یو ظریف مبصر هم وو. له ۱۸۷۳م څخه تر ۱۸۷۹ م پورې هغه په پروشین لینډټیګ کې او له ۱۸۸۱م څخه تر ۱۸۸۴م پورې په ریشټیګ (Reichstag) کې و اوسېد. که څه هم هغه په خپل علمي ډګر کې ماهر متخصص وو، خو بیا هم نوموړي د خپل هیواد له پاره د کومې ګټورې لاسته راوړنې او د خپلو صلاحیتونو د استعمال څرګندونه و نه کړه، بلکې د سیاست په میدان کې د نورو پلوی پاته سو. د نوموړي د سیاسي مبارزې نتیجه د بېشمېره نورو کسانو له پایلو سره چنداني توپیر نه درلود. سربېره پر دې دغه سیاسي هلوځلو د نوموړي علمي ژوند په وار، وار متاثره لا هم کړ. د ۱۸۴۹ م په مې (May) کې چې په سیسکوني کې کوم خوځښت راپورته سو او نوموړي برخه پکښې واخیسته نو له دې امله هغه د پروفیسرۍ له دندې څخه ګوښه کړل سو او لرې پاته وو، چې د محبس توري کوټې هم وویني.

کله چې په ۱۸۵۲م کې نوموړی له لېزګ پوهنتون څخه وایستل سو، نو هغه په زیورچ کې د قانون پوهنې استادي ومنله. دا چې له نوموړي سره د خپل المانیتوب ژور احساس وو، نو دا عمل د ده له پاره تر جلاوطنۍ په کمه نه وو. له دې وروسته په ۱۸۵۴ م کې هغه د پروشیا په بریسلا پوهنتون کې د استادۍ وړاندیز قبول کې. په همدې خای کې نوموړي د یوه کتاب فروش له لور میري ریمر (Marie Reimer) سره واده وکی. په دې اوږده او خوشحاله جوړه ژوند کې مومسین د (۱٦) اولادو خاوند سو.

په لېزګ، زیورچ او بریسلا کې د اوسېدو پر مهال نوموړي د روم د خوځښت(Romische Geschichte) د روم تاریخ) لومړی درې ټوکونه د ۴٦ ق م د تاپسس تر جګړې پورې ولیکی. د روم د تاریخ لیکني پر مهال هغه لومړی کس وو، چې په تاریخ لیکنه کې ئې له نویو میتودونو څخه کار واخیست. تر دې وخته پورې د روم د سلطنت په دوره پورې په دودیز ډول ترلې روښنفکرۍ او آزاد خیالۍ ته د لرغوني دور د نمونې په ډول کتل کېدل. مومسین دا نظر رد کړ، نوموړی له هغو کسانو څخه وو، چې خپل ماخذونه ئې له هر ډول تعصب او مصلحت څخه پرته بیانول. هغه په څرګند

ډول دا مثل، چې د تاریخ لیکنې پر بنسټیزو ماخذو د نقد له رویه نوموړی د نومیالي مؤرخ بارتولډ جارج نیبهر (Bartthold George Niebuhr) شاګرد دئ، خو هغه پوهان چې دغه مؤرخین پېژني په دې نظر دي، چې مومسین د روم په تاریخ کې د موجودو داستانونو په تطهیر کې له خپل ستر لاربنود څخه مخکې سو. هغه په دې پوهېدی، چې دې ته اړتیا سته، چې دغه لرغونی تهذیب د تقدس له پوښ څخه دباندې وکتل سي. همدارنګه نوموړی په دې نظر وو، تر و چې دغه تهذیب د المپیا[۳] له لوړ تخت څخه لاندې مځکې ته راکښته نه سي، نو په دې اړه د اولس د فکر رومانوي ډول نه سي بدلېدلای. البته د نوموړي دغه نوی ډول د ډېرو خلکو پر ذوق باندې سم نه لګېدی. هغوی په دې نظر ول، چې مومسین باید د تېر وخت د عکاسۍ له پاره د نونسمي پېړۍ سیاسي او ټولنیز اصطلاحات استعمال نه کړي. البته د دې خبري دا مطلب هم نه دئ، چې مومسین د روم خوځښت (Romische Geschichte) د خپل یو سیاسي تمایل تر تاثیر لاندې ولیکی، بلکې دغه کتاب د ډېر لوړ مقام هنري اثر دئ. څکه د دې کتاب د لیکلو ځانګړي سبک هم دغه کتاب ته له ادبي اړخه ارزښت او امتیاز ور کړی دئ.

د لفاظۍ ماهر د شفاهي روایاتو ساتونکی بلل کېږي، خو مومسین تر دې مقام هم وړاندي ځي، ځکه نوموړي په تاریخ لیکنه کې هم له اجتهاد څخه کار واخیست او په ژبه کې ئې خپل هنر څرګند کړ. د مثال په ډول هغه د روم پر تهذیب او د روم پر قانون باندې د دوو جلا، جلا کتابونو له پاره د موضوع مطابق دوې بېلې، بېلې ژبې (سبک) وکارولې. که څه هم په دواړو کتابونو کې د شکل او موادو له رویه د یووالي مثالونه لیدل کېږي، خو د موضوع له پلوه ئې د لیکلو په سبک کې توپیر سته. مومسین شاعر نه وو، خو د شاعرۍ له ټولو وسیلو څخه ئې ګټه پورته کړه او په دې ډول ئې د خپل شاعرانه استعداد له استعمال څخه خوند واخیست. هغه د خپل دې استعداد ښه څرګندونه په (Song book of three Friends) کې کړې ده. د نوموړي دغه کتاب په ۱۸۴۳م کې چاپ سو. په دې کتاب کې له مومسین سره د خپل ورور ټایکو (Tycho)، شاعر او لیکوال تیوډر سټورم (Theodor Storm) مرسته ملګرې وه. نوموړي په خپل ټول ژوند کې ګویټه د ایډیال په توګه وګرځاوه. هغه نوموړي ته یوازې د شاعر په سترګه نه بلکې د پېړۍ د ستر مفکر په ډول کتل. دا چې مومسین پر انګرېزي، فرانسوي او ایټالوي ژبو باندې پوره برلاسی وو، نو دې ټکي د نوموړي د تحقیقي سفر په بریالیتوب کې خاصه ونډه ودرلوده. د ده په لیکنو کې د ګویټه او شکسپیر حوالې په مساوي ډول په کثرت سره لیدل کېږي. ځیني کره کتونکي پر نوموړي دا نیوکه کوي، چې دی د قومندان سیزر (Caesar) ستاینه کوي او د هغه د مخالفینو پومپي (Pompey) او سیسرو (Cicero) د کمزوره ښوولو تمایل لري. دوی ته د نوموړي دغه تمایل د سیاسي روښنفکرۍ سره په ټکر کې ښکاري. مومسین په دې اړه وایي، چې د سیزر

---

[۳] د یونان هغه میدان ته ویل کېدل چې هر څلور کاله وروسته به د یوناني اولس تر نخ ادبي او ورزشي سیالۍ پکښې کېدې.

ستاینه ئې له دې امله کړې، چې نوموړي د زوال پذیره سلطنت ستاینه کړې ده. ښایي دا خبره سمه وي، خو د قومندان په دې ستاینه کې د مومسین د خپل کرکټر ځرکونه هم معلومیږي. د تاریخ لیکنې په ځانګړې ځانګه کې د آمرانه سبک د کارولو له امله د نوموړي مخالفینو د ده سبک ته د سیزر ایزم نوم ورکاوه. له دې امله هغه اړ وو، چې د خپل ذهني تمایل ملاتړي ملګري پیدا کړي. هغه د ژوند د هر اړخ له موثرو افرادو سره اړیکي لرلې او هغوی ته ئې په درنه سترګه هم کتل. هغه له خلکو سره د دوستۍ د پیداکولو خاص کمال درلود. البته دا بیا بله خبره وه، چې د نوموړي ملګرتیا ډېره له هغو کسانو سره وه، چې ده ته ئې تر ځانو په لوړه سترګه کتل. د مومسین ملګرتیا له هغو کسانو سره ډېره کمه پایېدله، چې د ده سیال به وو.

مومسین چې پر لاتیني کتیبو باندې کوم کار کړی وو، هغه ئې یوازې د پروشین د علومو اکاډمۍ د غړي په توګه خپرولای سوای. په ۱۸۵۸م کال کې نوموړي ته پر همدې بنسټ په برلین کې پر یو پوسټ باندې د تقرر وړاندیز وسو. په ۱۸۶۱م کې هغه د پوهنتون د فلسفې په ځانګه د پروفیسر په توګه وټاکل سو. دا چې مومسین له تاریخ لیکنې او معنویاتو (**Philology**) سره ځانګړې علاقه لرله، نو له دې امله نوموړي پر قانون پوهنه فلسفې ته ارزښت ورکړ. هغه څو داسې شاګردان وروزل، چې د روم پر تاریخ او کتیبو باندې کار وکړي. دغه کسان وروسته د پوهې د دې ډګر نومیالي وختل. نوموړي که له یوې خوا پر لاتیني کتیبو ستر کار وکړ، نو بل پلو ته ئې د څو نورو علمي طرحو او پروژو مشوره هم ورکړه. په دې پروژو کې په المان کې د روم د سرحدي کلابندۍ پر آثارو کار (**Monumenta Germaniae Historica**) او د لاتیني ژبې مترادف لغات (**Thesaurrus Linguae Latinae**) د یادوني وړ دي. د هغه ذهن په سپین ږیرتوب کې د یو رښتیني عالم په توګه د نویو افکارو منلو ته تیار وو.

کله چې نوموړي د کتیبو ویلو ته مخه کړه، نو دې کار د هغه تاریخ لیکنه له خنډ سره مخ کړه. همدا لامل دئ، چې "د روم تاریخ" بشپړ نه سو. له ۱۸۵۴م څخه تر ۱۸۵۶م پورې د دې کتاب درې برخې چاپ سوې وې. څو لسیزې وروسته چې کله نوموړی په برلن کې اوسېدی، نو د دې تاریخ د بشپړه کولو په اړه ئې فکر وکړ، خو بیرته ئې د څلورم ټوک د لیکلو اراده پرېښووه. دغه ټوک هغه د شهنشاهانو تاریخ ته ځانګړی کړی وو. مومسین په دې پوهېدی، چې هغه دغه کتاب د جمهوریه د تاریخ په شان ښکلی نه سي کښلای، ځکه نو نوموړي پر پنځم ټوک کار شروع کړ. دغه ټوک په ۱۸۸۵م کې چاپ سو. په دې ټوک کې د روم د سلطنت دلومړیو درو پېړیو د ولایتونو تاریخ ثبت دئ. په دې ټوک کې باید د کتیبو او سکو څخه د ماخذونو په توګه استفاده سوې وای. دا چې دغه دواړه ماخذونه په شکلي لحاظ خطي نه دي، نو د دې ملاحظې له مخې د روم د تاریخ پر دې اړخ د کار کولو له پاره مومسین ډېر وړ کس وو. دغه کتاب (**The History of Rome**) چې په انګلیسي کې چاپېدی، پنځم ټوک ته ئې د (**The Provinces of Roman Empire**) نوم ورکړ.

د روم تاریخ د مومسین تر ټولو ستر علمي کار نه دئ. پوهان په دې عقیده دي، چې د روم د سلطنت اساسي قانون **(Roman Constitution Law)** د هغه تر ټولو ارزښتمن اثر دئ. دغه درې ټوکیز کتاب له ۱۸۷۱م څخه تر ۱۸۸۸م پورې دوام پیدا کړ. مومسین په دې اړه داسې ویلي دي، چې که یو اثر زه ژوندی ساتلم نو هغه به دغه کار وي. ایټالویانو خپله هیڅکله دغه قانون ترتیب کړی نه وو، بلکې ببشمېره تشریحات ورسره مل ول. دغه کار تر ټولو مخکې مومسین وکړ. مومسین د کلاسیکو اثارو مطالعه له تاریخي رویه کول. هغه له خپلې تجربې څخه ګټه پورته کړه او د روم د اساسي قانون د تاریخي شکل له مخې ئې هغه و اوډی. دغه کار هغه چا کولای سوای، چې پر قانون او کلاسیکو ادبیاتو لاسبری وای. مومسین یوازینی هغه شخص وو، چې پر دې دواړو ئې لاس بر وو. دا چې نظامي واک، قانون پوهنه او اساسي قانون سره ورته موضوعات دي، نو له دې امله د حیرانتیا وړ خبره نه ده، چې په ۱۸۹۹م کال د روم جنایي قانون **(Roman Criminal Law)** په نامه د نوموړي وروستی کتاب چاپ سو.

مومسین په ژوند کې لا د خپلو معاصرینو له پاره د پوهې معیار ګرځېدلی وو. د مړینې پر مهال د هغه اتیایمې کلیزې ته یوازې یوه میاشت پاته وه. هغه په دې باور وو، چې تر هغو پورې نه مري، تر څو خپلې پروژې ئې بشپړې کړې نه وي او همداسې هم وسول.

**(The Corpus Inscriptionum Latinarum)** د لرغونو لاتیني کتیبو یوه جامع خزانه ده. مؤرخین د روم د لرغوني عصر د مطالعې له پاره له دې مستند ماخذ څخه سترګې نه سي پټولای.

په ۱۸۴۷م کې د لاتیني کتیبو د خزانې د ترتیب او خپراوي له پاره په برلن کې یو کمېسیون جوړ کړل سو. د تېرو څو پېړیو راهیسې په سوونو پوهانو پر دې موضوع کار کړی وو، خو په بشپړه ډول معرفي سوي نه ول. تیوډور او مومسین د دې کمیسیون له نامتو کسانو څخه ول. دوی د ایټالیا په اړه په څو ټوکونو کې یو اثر لیکلی وو. د دې کار د ډېرې برخې له پاره اړتیا وه، چې څېړونکي یادګاري او نورو ځایونو ته ورسي، د کتیبو څخه لیدنه وکړي او تر ممکنه بریده هڅه وکړي، چې د تر ټولو موثق کتبي متن تر لاسه سي. په کومو ځایونو کې چې کتیبې موجودې نه وې، خو په تېرو متنونو کې ئې یادونه سوې وه، هلته نو بیا د څېړني شکل تغیر موندی. دلته باید څېړونکو د هغو لیکوالو د لیکنو مقابله سره کړې وای، چې خپله ئې کتیبې لیدلې وې او د هغو متن ئې په خپلو لیکنو کې راوړی وو. مقایسوي مطالعه په دې کې مرسته کوي، چې یو څوک د متن تر ټولو اصلي شکله پورې ورسوي. د دوی دغه څېړنه، چې اووه لس برخې لرې د **(CIL)** په مخفف نامه سره یادیږي. په ځینو ځایو کې هره برخه څو، څو ټوکو ته رسېږي. په دې پروژه کې هڅه سوې وه، چې د تر لاسه سویو کتیبو داسې شکل وړاندې کړي، چې په هغه کې د حروفو ځای او جسامت بیان سوی وي. **(CIL)** په لاتیني ژبه کې چاپ سو. دغه څېړنه په هغه وخت کې د علمي لیکنو له پاره کاربده.

***

# هنر او ادب

چلوونکی:
وحید سباوون

پروفیسر راز محمد راز

## غزل

د الفت ستړي ستومان په ژړا راغلی
ستا له خوائې هر ارمان په ژړا راغلی

موږ خو پر پړده چي د میني پر انجام مي
سوړ احساسه شین اسمان په ژړا راغلی

ما رخصت پر ټلیفون چي ځني اخیست
په لهجه کي مي خزان په ژړا راغلی

حوصلې مي د فرقت چي ځني غوښتې
پټ په زړه کي هم جانان په ژړا راغلی

څومري سختي مرحلې سوې پر موږ تېري
چي پر حال مي امتحان په ژړا راغلی

هیڅ امکان د طرب پاته نه سو **رازه**
چي د میني هر عنوان په ژړا راغلی

۳/۱۲/۹۹، پېښین

سعید لودین / کاناډا

## غزل

لمر ته چي مو ساوي سوې سایې دونده اوږدې سولې
دې حقیرستان کي د خدایۍ پورته دعوې سولې

چاویل چي واړه بدمرغۍ په غلامۍ کي وي
لوړي په قیمت کي نمرودانو ته سجدې سولې

پام چي مي ورواووښت د ایمان کوچنوټي نوم ته نن
غرونه چي پر بارسي زما اوږې داسي درنې سولې

ستا یاد چي مو وکړلی زقوم راته خواږه سوله
ته چي راڅه هېر سوې د کوثر اوبه تروې سولې

زموږ په تدبیر خدایه زما کاروان پر ځنګل واوښتی
ستا په توکل موږ به خلاصي قافلې سولې

چا چي ستا پر لور د وفا یو قدم دراخیستی
ته ئې په وفا کي تر ښارګ لا ور نژدې سولې

څه به کړي بیان ستا عظمتونه د **سعید** بیان
پښو کې د فکرونو د حدودو زولنې سولې

د استاد احمد صمیم درې شعرونه:

### د ملا رحمت الله بابا پر سبک باندي

## د جهالت کلی

ژرله دې کلي هجرت وکه په منډه
څه تلوار کوه هیڅ مه کوه ته څنډه
چي هر څومي دغه راز ساتی په زړه کي
آخر زما څخه خبره سوه بربنډه
د غمو سایه په تا پسي پسې ده
ستا په سترګو کي ولاړ د اوښکو ډنډه
داوبو پر ځای په اوښکو غسل وکه
ناوي ته چي د واده په شپه سوې کونډه
د ماشوم لېوره پر نوم به دي زړه کي
چي تربرو دربانـدي جوړه کړله غونډه
یا به تا اویا کلن بوډا ته ورکي
چي ولاړ وي دغه تن د ګور پر څنډه
معتبره ده فتوا دلته د مشر
چي نیولې ئې ده لویه خېټه تنډه
بې کلتوره شاهدان به ورته کښېني
چي ملا صاحب خطبه دي وایه لنډه
عمرقید د څلور دېوالو دي جزا ده
څه ظالمه مشره ناسته پکښې شلنډه
جهالت او ظلم لاس سره ورکړی
دې ته نه ګوري څوک بوره ده یا رنده
پر تندي به دي لوی خال د زخم جوړ سي
پښې پښې دسیسې به دي کړي شنډه
د اسلام درکړی واک دي واک کي نسته
دلته واک د رواجونو لري ونده
تا میراث بولي مزدوره ورته ښکارې
ستا پر تول ژوندانه وهي ملنډه
سپکي سپوري به پر تا باندي راوري
ګواکي مبتلي ستا پر سر باندي کرکنډه
که ته لږ د خپل اختیار خبره وکړې
د اموضوع به درته غټه کي او پنډه
هله ژر تصمیم په پټه پټه نیسه
نه چي کوم شیطان سي ستا په مخ کي خنډه
ستا د حق آواز به څوک پورته کي خوري
دغه غم صرف د **صمیم** پر سر سو پلنډه

## مظلومه آرزو

نه هلال سوم پر افق باندي ختلی
نه شبنم سوم د ګل غېږ ته رالوېدلی

نه غوټۍ د خندېدو په تمه پایم
نه د مشکو د کاروانه سره تللی
نه د عطرو د ښیښې سره آشنا سوم
نه یو ګل د پسرلي سوم غوړېدلی
نه پتنګ سوم چي ډېوې سره یو ځای سم
نه یو شمعه د محفل سوم لګېدلی
نه مي کوم یو چارګل کي ځلا وکړه
نه زه ستوری د زهرا یم ځلېدلی

نه **صمیمه** حماسه د خوشال خان سوې
نه دي عشق دئ د رحمان سره پاللی

## غزل

خوشبویي دي رارسېږي له هر ځایه
ستا د زلفو په عنبرو مي زړه ښاد دئ

هره درخته سوه پرېشانه لکه زلفي
ستا د زلفو په شمال کي دا فساد دئ

پر هر بام باندي سپوږمۍ غوندي ځلېږې
ستا پر څورلسمه شپه مي اعتماد دئ

د دې بڼ هره غوټۍ به وغوړېږي
دغه بڼ ستا په خندا باندي آباد دئ

ستا د سختو ورځو غرونه به تراشمه
د تېښې کار خو هغسي د فرهاد دئ

پر **صمیم** دي ولي ولي؟ رحم نسته
هم دي پیر هم دي مرید هم دي استاد دئ

عبدالظاهر څرک

# هدیرې

دا زاړه زاړه قبرونـــــــــــه
پـــر تېـــر ســـوي دي قرنونـــه
پـــر هـــډوکو ئـــې پراتـــه دي
د کلـــــو کلـــــو کرزونـــــه

ښـــايي دا بـــه پـــه نـــړۍ کـــې
د ځپـــل وخـــت قهرمانـــانو وه
ښـــايي څـــوک بـــه نابغـــه وه
څـــوک او څـــوک بـــه حکيمـــانو وه

ښـــايي څـــوک بـــه لا غـــوټې وې
څـــوک او څـــوک بـــه لا ګـــلانو وه
ځينـــي ځينـــي بـــه وې پيغلـــې
ښـــايي ځينـــي بـــه زلميـــانو وه

مګـــر اوس تـــر خـــاورو لانـــدې
د مرګـــي څپـــې وهلـــې واويـــلا ده
دا ئـــې ژونـــد دا ئـــې حاصـــل دئ
د يـــوې خنـــدا د پـــاره تـــل ژړا ده

***

ثريا حميدي

## څلوريځه

څـــه د مينـــې بېـــل ژونـــدون وو
نـــه کتـــاب نـــه خـــو مـضمـون وو

بـــس خـــوږ ژونـــد وو تېرېـــده بـــه
د دوو زړونـــو پيوســـتون وو

عبدالظاهر څرک

# لويه خدايه

لويه خدايه ته پر ما باندي ورحمېږه!
داسي لوړتيا نه غواړم چي ستا بندګان ټيټ راته ښکاره سي،
ستا په بندګانو کي مي محبوب وګرځوه.
داسي پوهه راکړه چي ستا مخلوق فيض راځخه يوسي.
باطني بصيرت راپه برخه که.
خدايه!
پر بدو اعمالو او د انسان پر زهير بدو قدرت مه راکوه.
زه د قناعت هغه مرې سترګي غواړم کم چي رحمان بابا د دوهې پر غاړه خان شاه جهان ويني.
ما ته هغه قوت راکه چي ستا د پېژندلو باعث وګرځي.
ما ته هغه معنوي حس راکه چي د مشکلاتو د برداشت کولو توان ولرم.
د فضايلو په روحاني نعمتو مي موړ که څو د ګېډي و بت ته سجده و نه کړم.
الهي!
د عقايدو لوښي مي د وحدانيت په کوثر راډک که او د کبر تنده مي په عجز رااوبه کړه.
الهي!
د بدبينۍ اور مي ايره کړې او د خوشبينۍ اور مي تازه کړې!

# د فراق سهار

د شمعې اوښکي وچي سوې.
د پتنې ايره نسيم يووړه.
مستانو د ميخانې د چارچوب څخه پښې راواړولې.
پرېشانه زلفي نامنظمه او ګرمه فضا يخه سوه.
د شبنم څاڅکي د ګل د غېږي څخه ولوېد.
د فراق بحر پر څپو سو.
د ګلانو ګېډۍ مړاوې سوه.
او مړاوو سترګو د وداع آخري خنجرونه په زړونو ښخول، چي لمرڅرک هم رانژدې سو.
خو د مسافر په زړه کي دايمي خاطرې د ډېر وخت له پاره ځای ونيوی.

سعید وصال/ استرالیا

## رضا

دا سرور دئ دا ثنا ده    دا طلب د طوافونو
دا ژوندون دئ دا بقا ده    دا وفا د پیکرونو
تږې سترګې دي پر لاري    دا امید پر دریاب نښلي
سفرونه دا غزو دي    د ګلونو پر باب نښلي
یو انګار دئ په سینه کې    ستا د مینې په باد پاخي
د جمال مستۍ اخیستی    د تیارو پر بزم ناخي
دوفا په تنګ تړلي    د سرور بګړۍ مستیږي
ستا درنګ او نورجهان کې    دا جهان راڅه هېرېږي
داد سوي زړه لمبه ده    ودرشل ته در روانه
دا یوه خاورین صورت کې    ستا په یاد وینم روښانه
یو هجوم دولولو دئ    دښکلا کلي ته درومي
ستا د یاد په خلوتو کې    دسکون پیلامه مومي
په سل واره دي درشل ته    دأمید ګلونه توی کړم
ستا د مینې هر ربات کې    دفردوس باغونه بوی کړم
اې سلطان د کایناتو    درښا په کوثر پایم
اې خالق د موجوداتو    ستا د یاد ترانه وایم
ستا شغله ده چې بهیږي    دکمال پر تصویرونو
ستا ښکلا ده چې خندیږي    د تخلیق پر وزرونو
اې د زړو مالکه ګرانه    اې محبوبه اې جانانه
اې خالق زما سروره    اې پخپل ذات کې سبحانه
یو ګستاخ دي و درګاه ته    په ستومانه سرو لاړ دئ
د طلب ځنځیر په غاړه    په خوږمن تمر ولاړ دئ
د رسا نظر شفق دي    د ژوندون پر مقر غواړي
ستا رضا چې پر کوم لار ده    د هغې لار ساغر غواړي

د ثریا حمیدي افغان دوې غزلې

## غزل

زړه نه مې را تاوي سرې لمبې دي ستا د عشق
څکه مې نن سترګو کې نښې دي ستا د عشق
ټوله شپه بس لاس ترزنې ناسته په سوچونو
فکر ته راغلي افسانې دي ستا د عشق
مخکې دي ویله چې خوښې او درد دي نسته
اوس بیا راته وایې څه کیسې دي ستا د عشق
زه خو یې نه سر او نه هم پای باندې سوم پوهه
لاري یې ستونزمني او اوږدې دي ستا د عشق
دوی هره شیبه کړي له وصاله سره تېره
اې «**ثریا**!» څه ویرجنې شپې دي ستا د عشق

## غزل

د ژوند پاڼې مې نیمګړې بې له تا دي
ځوانیمرګي دي، نیمګړي نیمه خوا دي

چې یې وینمه شیبه- شیبه قتلېږم
څه خوني دي څه خونکاري سترګې ستا دي
ستا یو غم ماته له ټولي نړۍ ډېر وي
فکر کړم ټوله غمونه مې په شا دي
عاشقان دي فریاد نه کړي جدایي نه
زلیخا او یوسف هم سره جدا دي

غم او درد، بېلتون او وېره، تکلیفونه
ستا په عشق کې ټول منلې "**ثریا**" دي

# د سقراط تلپاته نظریات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقیري

## دوهم فصل

### سقراط د ځوانانو فاسق او مفسد نه وو

څه چي ما لا زيات حيرانوي هغه دا چي ځينو خلګو باور لاره چي سقراط د ځوانانو فاسق او مفسد وو! خو البته حقيقت دا دئ چي سقراط د ټولو انسانانو په منځ کي تر ټولو هوښيار، موقر، او سپېڅلی وو. هغه په ورين تندي د ژوندانه تودې او سړې ګاللې، او هيڅ زحمت، تکليف او خوارۍ نه سوای ترهولای. که څه هم هغه ډېره لږه شتمني لرله، خو هغه زده کړي ول چي بايد له هيڅا څخه حتی د ډېر کم شي تمه هم و نه لري. هغه تل په کافی اندازه پوخ قناعت لاره. اوس نو، سوال دا دئ چي څرنګه به سقراط بې تقوايي، بې عدالتي، خوږماري، ناپاکي، اسراف، او تجمل تشويق کړی وای؟ هغه له دغو اعمالو او خيالونو څخه دونه ليري وو چي پخپله تقوا او پاکي ئې ډېر خلک لدې راز ګناهونو او شرارتونو څخه ژغورلي ول، او په هغوی کي ئې د تقوا عشق خپور کړی

وو. سقراط دغه راز په هغوی کي د نړۍ
د پرمختګ او انکشاف هیله هم خپره
کړې وه، البته په دې شرط چي هغوی د
خپل ځان لږوډېر خیال ساتلی وای. اما
هغه هیڅکله له هیچا سره دا ژمنه نه وه
کړې چي هغه ته به دا وښیي چي څرنګه
متقي سي. خو لکه څنګه چي سقراط
تقوا خپل اجتماعي او عام ورځنی مسلک
ګرزولی وو، هغه د هغو کسانو په ذهنونو
کي چي د هغه سره ئې مدام لیده کاته
کول دا هیله خپره او تزریق کړې وه چي
د هغه په شان متقي او پاک واوسي، او د
هغه لاره تعقیب کړي.

بلخوا، سقراط خپل تن او بدن نه
وو هېر کړی، او هغه خلګ ئې هم نه
ستایل چي د خپل بدن سره ئې غفلت
کاوه. په همدې لړ کي، هغه پر هغو
خلکو باندي انتقاد کاوه چي د زیاتو
خوړلو عادت ئې خپل کړی وو، خو بیا
وروسته ئې شدید سپورټ کاوه. هغه د
خوړلو د داسي اندازې سپارښت کاوه
چي انساني فطرت ئې راضي او خوشحاله
کاوه. سقراط تر خوړو وروسته د نرم او
اعتدالي کسرت سپارښت کاوه، ځکه
هغه باور لاره چي دا طریقه د روغتیا له
پاره ګټوره ده. مانا داچي دماغ او ذهن
ارام او متمرکز کوي. همدارنګه، سقراط
د جامو په اغوستلو کي نه فېشني او نه
هم قیمتي وو. البته څه چي زه د هغه د
کالیو په ارتباط وایم د هغه د ژوندانه ټول
کیفیت او درک پکښې نغښتی دئ. د
سقراط په مجلس کي انډیوالان ئې
هیڅکله هم نه سرانښ او نه هم حریص
کېدل. هغه هڅه کوله چي خپل یاران له
دې بد عادت او دغه راز له نورو ناوړه
عادتونو څخه وژغوري. ځکه سقراط
هیڅکله د هغو کسانو انعام نه مانه چي
له ده څخه ئې سلامشوره غوښته. هغه
ویل چي له دې لاري نجیب او سخي
زوړونه کشفېدای سي. د سقراط په باور
هغه خلګ چي له دې لاري پیسي اخلي،
کنجوس او ټیټ فطرته غوندي ښکاري.
د ده په ګومان هغوی خپل ځانونه او
شخصیتونه پلوري. په بل عبارت، دوی
پر خپلو ځانونو باندي د هغو خلګو د
تعلیم او تدریس ضرورت تحمیلوي چي
معاش ئې ترې اخیستی وي. هغه به
حیران پاته وو چي ولي یو سړی چي د
تقوا د تدریس ژمنه کوي، باید د معاش او
پیسو غوښتنه وکړي؟ ځکه د هغه په
ګومان چي دا دې ته پاته کېږي چي
نوموړی په دې باور نه لري چي تر ټولو
غټه ګټه د ښو یارانو ترلاسه کول دي. او
یا دا چي هغه له دې څخه ډار لري چي
هغه څوک چي د ده پر لاس متقي او
سپېڅلی سي، او له ده څخه د دغي
ستري فایدې او تفوق د تر لاسه کولو
افتخار ولري، هغه به د دغه خدمت له
کبله په کافي اندازه له ده څخه مشکور
نه وي. دا راز خلګ د سقراط سره کاملاً
متفاوت ول. سقراط هیڅکله د دغي
ښېګڼي په باب لاپي شاپي نه وهلې، خو
په دې کاملاً ډاډمن وو چي ګردو هغو
خلګو چي دی ئې یا اورېدلی او یا د ده

نصحتونه وررسېدلي دي، هغوی به د ده سره تلپاته مینه ولري او بالاخره به دی په دې توانېدلی وي چې نورو ته ئې د عشق کولو هنر ور ښودلی وي. اوس نو، هر هغه څوک چې وايي چې دا راز یو سړی به ځوانان مفسد او فاسقوي، باید په عین زمان کي دا هم ووايي چې د تقوا مازي زده کړه او مطالعه پخپل ذات کي فسق او فجور دئ.

خو د سقراط اصلي مدعیانو ویل چې هغه په جمهوریت کي له تصویب سوي اساسي قانون څخه کرکه تدریسوي، ځکه لکه څنګه چې هغه بار بار ویلي دي چې د قرعه کشۍ په اساس د قاضي القضات انتخاب سپېره حماقت دئ. سقراط ویلي ول که چیري یو څوک یو ماهر ماڼو، هنرمن او یا مهندس ته اړتیا ولري، هغه به د دغو مسلکي ماهرانو انتخاب تصادف ته خوشي نه کړي. ځکه د دغو خلګو کمزوري او په تېره بیا اشتباهات د هغو خلګو په تناسب سخت پیکه او بې اهمیته دي چې د یوه جمهوریت مسئولیتونه او کارونه پر مخه بیايي. همدا وجه وه چې سقراط به ویل چې دا راز استدلال پخپله ځوانان له قانون څخه کرکي ته هڅوي، او هغوی لا بېباکه او ډانګي کوي. مګر زما په اند، البته د احتیاط او بصیرت د هنر په پام کي نیولو سره، او د یوه داسي چا په باور چې عقیده لري چې هغه خلګ چې خپلو همښاریانو او وطنوالو ته ښه سلامشوره ورکوي، هغوی ندرتاً د توند طبیعت خاوندان کېږي؛ ځکه هغوی پوهېږي چې تشدد او مرګ ژوبله تل له کرکي او خطرونو څخه ډک وي. خو په مقابل کي، د استدلال او تشویق په زور د خلګو زړونه او فکرونه ګټل، د میني او امن استازیتوب کوي. ځکه هغه خلګ چې موږ په زوره مجبوره کړي وي، هغوی په زړونو کي زموږ پرخلاف پټه کرکه روزي. هغوی باور لري چې موږ ورسره ناحقي او ناروا کړېده؛ خو هغه کسان چې موږ دې ته هڅولي وي چې زموږ سره خپلي ملګرتیا ته دوام ورکړي، هغوی باور لري چې موږ ورسره ښه او مرحمت کړی دئ. نو بنا، خلګ د بصیرت او احتیاط د مطالعه کولو په نیتجه کي تشدد ته مخه نه کوي، بلکي هغه کسان ډانګیتوب او تشدد ته مخه کوي چې طبیعت ئې قهرجن وي، او زیات قدرت ئې په لاس کي وي، او بر علاوه د قدرت د استعمال او مهارولو له پاره کمزوری قضاوت هم ولري. سقراط ویلي وو کله چې یو سړی د دې عزم ولري چې هر کار د قوې په زور وکړي، هغه مجبوره دئ چې د خپلو فیصلو د عملي کولو له پاره خورا زیات ملګري ولري؛ مګر په مقابل کي هغه څوک چې د خلګو د ترغیب او تشویقولو هنر او کمال ولري، هغه پرته له ځانه بل چا ته اړتیا نه لري. همدا راز، هغه وینو تویولو ته هم ضرورت نه لري، ځکه که چیري یو څوک د بل چا ملاتړ او همکاري د موافقې او نرمښت له لاري تر لاسه کړي، هغه به تل یو داسي

مطمئن ملګری ولري چې هیڅکله به هم د هغه پر خلاف اقدام و نه کړي.

د سقراط مدعیانو د خپلو تورونو د ثبوت له پاره ویل چې د سقراط مفکورې پر خلکو منفي اثرات لري. هغوی د دغه اتهام د ثبوت له پاره ویل کریتیاس او السیبیادیس څوک چې د سقراط خورا نژدې ملګري ول، ډېر بد او شریر خلګ ول، او د خپل هېواد پر ضد ئې ډېر شرارتونه کړي ول. هغوی ویل چې کریتیاس، د دېرشو ظالمانو د حکومت په دوره کې، تر ټولو ظالم او جابر سړی وو. السیبیادیس تر ټولو فاجر او فاسق، تر ټولو ګستاخ، او تر ټولو بېباکه سیته‌زن (ښاروند؟) وو چې جمهوریت ئې پخپل تاریخ کې سارې نه وو لیدلی. البته زه دنته د دې خیال نه لرم چې هغوی توجیه کړم، مګر غواړم چې یوازې هغه دلایل وړاندې کړم چې ولې دوی د سقراط سره مدام کتل. البته باید ووایم چې هغوی نامحدوده جاه طلبي درلوده، او هوډ یې کړی وو چې په هر قیمت چې کېږي دولت اداره او وچلوي، او هیڅ‌ا له دې هدف څخه نه سوای راګرزولای. هغوی اورېدلي ول چې سقراط په ډېرو کمو او یا د هیڅ شي د نه درلودلو سره سره خوشحاله او ارام ژوند کوي، او کاملاً پر خپل نفس باندې حاکم دئ. د هغه استدلال دونه غښتلی دئ چې ګرده عالم هغه طرف ته کشولای سي چې زړه ئې غواړي. لکه څرنګه چې ما مخکې د دوی طبیعت بیان کړ، اوس نو سوال دا دئ چې ایا هغوی په دې خاطر د سقراط سره اشنایي غوښته چې د هغه د ژوندانه له طریقې سره ئې مینه لرله، او که ئې د هغه اعتدالي طریقه خوښېده؟ او که له دې کبله چې هغوی باور لاره چې د سقراط سره ګرادوو او بانډار به هغوی په دې وتوانوي چې سم استدلال زده کړي، او په دې به وتوانېږي چې په حکومتي چارو کې سم مدیریت وکړای سي. زما په نظر که چیرې خدایانو هغوی ته وړاندیز کړی وای چې یا به تل لکه سقراط ژوند کوئ او یا به سمدستي مړه کېږئ: دوی به ښایي سمدستي مرګ انتخاب کړئ وای. د هغوی له اعمالو څخه دا واقعیت په اسانی سره استنتاج کېدای سي، څکه کله چې دوی به دې پوه سول چې نور نو تر خپلو شاګرو ښه او قابل سویدي. هغوی د سقراط لمن پرېښوده. هغوی د سقراط سره یوازی د هغه هدف له پاره اشنایي کوله چې ما ئې مخکې ذکر وکړ.

ښایي څیني اعتراض وکړي چې سقراط باید د حکومت او سیاست په اړوند مسایل د خپلو ملګرو سره تر هغه وخته پورې نه وای مطرح کړي تر څو یې هغوی ته لومړی د متقي ژوند کولو او تقوا لارې چارې نه وې ښودلي. زه په دې باب هیڅ نه وایم؛ مګر ما مشاهده کړې دي چې ټول هغه کسان چې د ښوونې او تعلیم په چارو بوخت وي او یا ئې ادعا کوي عموماً دوه شیان کوي: هغوی د خپلو شاګردانو په حضور کې کار کوي،

څو هغوی ته ئې وښيي چې کارونه څرنګه بايد وکړي، او دغه راز هغوی ته شفاهي ښوونه او روزنه هم ورکوي. اوس نو، په دوارو صورتونو کې، هيچا هيڅکله د سقراط غوندي د ښه ژوند کولو لاري چاري نه دي تدريس کړي؛ ځکه هغه پخپل ټول ژوند کې د بې ساري سپېڅليتوب او تقوا مثال وو؛ هغه پخپلو ګردو مباحثو کې د تقوا او پاکۍ خبري کولې او هم ئې د انسانانو د وظايفو او مسئوليتونو په باب په داسي طريقه خبري کولې چې ټولو اورېدونکو ئې تعريف او تمجيد کاوه. او زه په دې خبري ښه واقف يم چې تر هغه وخته پوري چې سريتياس او السيبياديس د ده سره ملاقاتونه او راسه درسه لرله هغوی ډېر با تقوا ژوند او ګوزران کاوه؛ البته نه دا چې هغوی له ده څخه ډارېدل، خو ځکه ئې دا کار کاوه چې هغوی ګومان کاوه چې په هغه وخت کې دا ډول ګوزران د هغوی د طرحو له پاره تر ټولو مناسب کار وو.

زياتره هغه خلګ چې د فلسفې سره د ميني درلودلو تظاهر کوي ښايي اعتراض وکړي چې يو متقي کس تل متقي وي، او يا دا چې کله يو کس يو ځل ښه او اعتدالي سي، هغه به هيڅکله بيا شرير، فاجر، او بدکاره نه سي؛ ځکه کله چې ځيني عادتونه خپل سي، او کله چې دا کار تر سره سي، بيا نو هيڅکله له ذهن او دماغ څخه محو کېدلای نه سي. خو زه موافق نه يم؛ ځکه لکه څنګه چې هغه خلګ چې کسرت او فزيکي کارونه نه کوي، د هغوی غړي سست او کمزوري وي او په بدني کارونو کې لټ او بې خونده وي، همدا راز هغه خلګ چې خپل دماغ او ذهن په کار نه اچوي، هغوی هم د دماغ له عالي ګټو څخه محروم وي، او نه هم په کافي اندازه د دې همت لري چې په يوه داسي عمل لاس پوري کړي چې په يادولو او ستايلو وارزي. او نه هم پر خپل نفس باندي دونه غالب وي چې له هغو شيانو او اعمالو څخه ډډه وکړي کوم چې منع سوي دي. بلخوا، که څه هم ځيني والدين به د خپلو ماشومانو په ښه قطري مزاج باندي پوره ډاډه وي، خو بيا هم خپلو اولادونو ته د بد ملګري د خطراتو په اړه له اخطار ورکولو څخه غفلت نه کوي، ځکه دا کار نه کول د ښه اخلاق او تربيې بربادي ده. حال دا چې د ښو خلګو باندار او ملګرتيا د تقوا متواتر تمرين او تيوريک زده کړه ده. لکه څنګه چې شاعر وايي:

«د هغو خلګو سره چې مور مدام ناسته ولاړه کوو، هغوی زمور مخکښ وي:

د دې ښه مثال، هغه قانون دئ چې ټول ئې اطاعت کوي.

نو د ښو سره، مور ښو ته تمايل پيدا کوو.

خو شريره دايره او ملګري دماغ او ذهن فاسدوي».

[چې اوسې، په خوی به د هغو سې] مترجم.

په همدې برخه کې یو بل شاعر داسې وايي:

«تقوا او شرارت د انسان په خټه کې اخښل سوي دي.

کله يوه خوا در نه سي، او کله بيا بله پله در نه وي».

او زما په نظر، هغوی حق او سم وايي: ځکه کله چې زه د هغو کسانو په باب فکر کوم چې شعرونه ئې په ياد کړي وي، د هغوی همدا شعرونه هېرېږي مگر دا چې مدام ئې تکرار کړي. نو بنا زه باور لرم هغه کسان چې د فيلسفوانو استدلال هېروي او يا غفلت ور سره کوي، په داسې يو حالت کې د استدلال فهم ورک او هېرېږي. کله چې اجازه ورکړه سي چې همدا عالي مسايل او خيالونه ئې له حافظې څخه پاک سي، دوی په عين زمان کې د هغو شيانو مفکوره له لاسه ورکوي چې په روح کې د اعتدال له مينې سره ملاتړ او ملګرتيا کوي؛ او کله چې همدا خيالونه هېر کړي، څه عجبه به نه وي چې بالاخره او په اوږدې مودې کې هغوی اعتدال ښځي يومخيزه هېر کړي؟

برعلاوه، ما مشاهده کړي دي هغه خلګ چې د ښځو او شرابو په ناولتوب کې ډوب سي، بيا نو د هغوی له پاره دا ډېره مشکله سي چې په ګټورو کارونو ځان بوخت کړي، او يا له هغو شيانو څخه ډډه وکړي چې زيانمن دي. زياتره هغه کسان چې له مين کېدو څخه مخکې سپما او ساده ژوند کوي، تر مين کېدو را وروسته کله چې مينه غلبه پر وکړي خرڅاوو او اسرافي سي. کله په دې مشکل کې دونه ژور ولاړ سي چې خپله ټوله شتمني او جايداد پکښې ضايع کړي. دوی وروسته د ډوډۍ د پيداکولو له پاره داسې کارونو ته مجبوره سي چې پخوائې په کولو شرمېدل. اوس نو، هغه څه دي يو داسې سړی چې پخوا اعتدالي وو له دې را ګرزوي چې بيا هغسې و نه اوسي، او يا دا چې هغه چا چې يو وخت ئې ښه او نېک ژوند کاوه بيا هغسې ښه او نېک ژوند و نه کړي؟ زه فکر کوم چې ګرده تقواوي، او تر ټولو مهم اعتدال، د هغوی په تمرين او پراکتيس پوري تړلي دي. ځکه شهوت، کوم چې د روح سره جوخت په بدن کې ځای لري، په دوامداره توګه بدن دې ته هڅوي چې له تقوا او اعتدال څخه فاصله او کرکه پيدا کړي، او داسې لنډې لارې چارې وميندل سي څو يوازې غريزې او حواس راضي سي.

نو، که څه هم سريتياس او السيبياديس د سقراط په ډېره مرسته په دې توانېدلي ول چې خپل تمايلات او غريزې رامي کړي؛ خو کله چې دوی له سقراط څخه بېل سول، سريتياس په تيسالي کې مېشت سو، او له څو عياشو او بېباکو انډيوالانو سره په عياشي کې ډوب او بالاخره يې ځان سټ کړ، او السيبياديس د څو دانو باکفايته او ښکلو ښځو د مينې په تارونو کې راګير سوی وو، ځکه هغه خورا ښکلې ځواني لرله؛ او

د یو شمېر هغو چاپلوسانو او غوړمالانو په واسطه فاسد او وران سوی وو چې مدام به د ده کره ناست ول، ځکه هغه په ښار او ایتلافي ملګرو کې زیات پولي اعتبار لاره. په بل عبارت، هغه احساسول چې د اتن ټول خلګ ئې احترام کوي، او هیچا د هغه لومړی مقام او مخکښ نقش تر سوال لاندي نه راوست. همدا وجه وه چې هغه د خپل ځان سره غفلت پیل کړ، او داسي چم ئې کاوه لکه یو ستر پهلوان چې نور نو په کسرت او تمرین کولو باندي ځان نه ستړی کوي ځکه هغه داسي څوک نه ویني چې د ده سره دي غېږ وباسي او مقابله دي ور سره وکړي او یا د ده مقام ته دي چلنج ورکړي.

اوس نو، که چیري موږ ټول هغه شیان چې دوی ته ورپېښ سوي ول ملاحظه او معاینه کړو، که چیري موږ دې ته هم متوجه سو چې د هغوی عالي نسب، د هغوی ګټې، او د هغوی شتمنۍ، د هغوی سرونه ورپړسولي او دماغونه ئې ور ډک کړي ول؛ که چیري موږ د هغوی د بدو یارانو په باب تفکر وکړو کوم چې پر دوی راڅرخېدلي ول، او د هغو ګڼ شمېر فاسد کونکو فرصتونو په اړه هم سوچ وکړو چې دوی ته ئې خپله غېږه پرانیستې وه، ایا کېدای سي چې موږ لا اوس هم په حیرانتیا کي واوسو؟ په تېره بیا چې دوی د زیات وخت له پاره د سقراط له مجلس څخه محروم او غیرحاضرول، او بنا دوی د خپلي ګستاخۍ او فجور معراج ته ختلی

ول. که چیري دوی په جنایاتو مرتکب سوي وي، نو ایا متهم کوونکي کولای سي چې سقراط هم له دوی سره جوخت ګرم کړي؟ بلخوا، د دې اجازه هم ور نه کړي چې د سقراط صفت او تمجید وسي، ځکه که چیري سقراط هغوی د ځوانۍ په دوران کي د خپلو وظایفو او مسئولیتونو په دایره کي ساتلي نه وای، دوی به تر ټولو بد او داسي کسان وای چي کنټرولول به ئې نا ممکن وای. خو موږ پر نورو مسایلو باندي په دې ډول قضاوت نه کوو، ځکه ایا دا به سمه وي چې یو هنرمند، یو شپېلۍ ږغوونکی، او یا بل هر کس د یو استاد تر تدریس وروسته کله چې د یو بل استاد تر نظر لاندي سبق وایي د هغه د زیاتېدونکي جهالت په خاطر دي لومړی استاد ملامت وبلل سي؟ که چیري یو ځوان هلک یو داسي انډیوال پیدا کړي چې هغه په بدو او ورانیو کي لتاړ کړي، ایا د هغه پلار باید د خپل زوی هغه لومړي انډیوالان ملامت و بولي د چا په دایره کي چې ئې زوی تل متقي او پاک ژوند کاوه؟ ایا دا به حق نه وي چې هر څونه چې پلار ئې پوهېږي چې د زوی وروستۍ یارانه د ده له پاره ورانوونکې تمامه سوې ده، د پلار له پاره باید لا نور دلایل هم موجود وي چې د خپل زوی لو مړني انډیوالان وستایي؟ او یا ایا هغه پلرونه چې هره ورځ د خپلو اولادونو سره نه وي، د هغو ګناهونو مجرم دي وبلل سي چې اصلاً یې هیڅکله خپلو زامنو ته نه دي

ښودلي؟ اوس نو، دوی باید سقراط په دې شکل لیدلی وای او قضاوت ئې باندي کړی وای؛ که چیري هغه یو بد او ناوړه ژوند کړی وای، دا به روا کار وای چي هغه شریر او بدکاره بلل سوی وای؛ مګر که چیري هغه ښه او نیک ژوند کړی وو، ایا دا به عدالت او انصاف وي چي په هغو جنایاتو تورن سي چي هغه کاملاً ترې پاک او بې ګناه وو؟

په عین حال کي، سقراط ښایي خپلو مخالفانو ته دا فرصت ورکړی وي چي هغه په دې متهم کړي چي په نورو کي شرارت او بدي تصویبوي، خو البته ده خپله له دغو ناروا وو څخه ځان پاک او ازاد ساتلی وو. مګر حقیقت دا دئ چي سقراط له فسق او فجور څخه په رشتیا هم کرکه لرله، البته نه یوازي د ځان له پاره، بلکي په نورو انسانانو کي ئې هم غندل. د دغي خبري د ثبوت له پاره، زه باید دلته د سریتیاس سره د هغه چال چلن بیان کړم، ځکه سریتیاس کاملاً فسق او فجور ته معتاد وو. سقراط درک کړې وه چي دغه سړي د یوتیدیموس له پاره دونه غیرطبیعي اشتیاق لاره چي د دغي طریقې په ملاتړ کي به دونه په سرعت او بېړه کي پر مخ ولاړ سي چي ښایي د طبیعت له حد او بریده هم سرغړونه وکړي. سقراط د هغه سلوک هک پک کړی وو، او هڅه ئې کوله چي د خپل ټول استدلال او کمال په زور هغه له خپل وحشي او حیرانوونکو هیلو او میلان څخه راوګرزوي. لکه څنګه چي د سریتیاس تهور او بې پروایي هیڅ ډول کنټرول نه مانه، له بلي خوا هغه د سقراط د هر نرم توبیخ سره غفلت کاوه. همدا وجه وه چي زموږ فیلسوف، د تقوا او فضلیت سره د بې ساري مینې او احترام په خاطر، داسي ژبه او کلمات وکارول چي سمدستي ئې د سپېڅلتوب او نظم له پاره خپل ذاتي او دورني احساس رابرسېره او اعلان کړ. خو په عین حال کي ئې د سریتیاس له وحشي، بې شرمه، او کرغېړني مشغولا څخه هم پرده پورته کړه. د سقراط دا کار که څه هم شدید او سخت وو، خو مناسب او منصفانه توبیخ وو. ګومان کېږي چي د سقراط همدې عمل د هغه کېنې او کرکي منشا وه چي سریتیاس تل د هغه په مقابل کي لرله. ځکه د دېرشو ظالمانو د حکومت په دوران کي، سریتیاس د هغوی له جملې څخه یو ظالم وو. هغه په دې وخت کي د چاریکیس سره په ګډه د ښاري حکومت مدني چاري کنټرولولې، او هیڅکله ئې د سقراط همدا سپکاوی نه وو هېر کړی. د دغه توهین د تلافي او غچ له پاره ئې هغه قانون تصویب کړ چي د اتن په ښار کي ئې د استدلال د فن تدریس منع اعلان کړ. څرنګه چي هغه د سقراط د توبیخ له پاره هیڅ وسیله نه لرله، نو بنا هغه هڅه کوله چي د سقراط پر خلاف کرکه او انزجار راوپاروي. هغه پر سقراط باندي داسي کرغېړن تورونه او ټاپې لګولې چي عموماً د فیلسوفانو پرخلاف

کارول کېږي. ځکه ما هیڅکله له سقراط څخه نه وو اورېدلي چي دی همدا هنرونه تدریسوي، او نه مي هم داسي کس لېدلی دئ چي ویلي دې وي چي سقراط همدا شیان کله هم تدریس کړي وي. په هر صورت، سریتیاس سخت په قهر وو، او د خپلي غوسې په اړوند ئې په کافي اندازه شواهد او مثالونه پر ېښي ول. کله چي دېرشو ظالمانو د خپل تور حاکمیت په دوران کي زیات شمېر ښاریان ستېزن اعدام کړل، چي حتی نامتو او مخور خلګ هم پکښي شامل ول، او کله چي د تشدد او استبداد ټولي کرغېړني لاري چاري او وسایل کارېدل، سقراط په یوه ځای کي ویلي ول چي حیران دې ته دئ چي که چیري یو سړی یو ګورم ساتي او د هغه له بې پروایي او غفلت په وجه هره ورځ یو شمېر بوده او نور حیوانات ورکېږي، او نور ئې د ده د بې احتیاطۍ له سببه ورځ په ورځ ډنګر او خوار ېږي، هغه باید دا ومني چي د خپل ګورم له پاره یو بد ګوروان دئ. البته تر دې لا بله عجبه خبره دا ده که چیري د دولت یو مشر هره ورځ د خپلو خلګو د کموالي سبب ګرزي، او باقي پاته خوار او غریبوی، ایا هغه باید پخپل مشرتابه و نه شرمېږي، او ایا باید ځان یو بد او نالایقه مشر و نه ګڼي؟ همدا خبره سریتیاس او السیبیادیس ته رسېدلې وه، هغوی سمدستي سقراط را احضار کړی وو، او هغه قانون ئې ورته ښودلی وو چي دوی تصویب کړی وو، کوم چي

سقراط ئې منع کاوه چي له ځوانانو سره باندار او بحث وکړي. د دې خبري له اورېدو سره سم، سقراط له هغوی څخه وپوښتل چي ایا د یوه سوال اجازه لري، ځکه دا سوال به له ده سره مرسته وکړي چي د دغه لایحې په هغو جزئیاتو باندي خبر سي چي اوس په خبر نه دئ. د هغه دا غوښتنه ومنل سوه، او هغه خپلي خبري داسي پیل کړې: «زه کاملاً چمتو یم چي ستاسو د قانون مراعت وکړم؛ مګر زه نه غواړم چي د ناپوهۍ په وجه سرغړونه ترې وکړم، زه غواړم چي ستاسو په مطلب ځان پوه کړم چي ایا تاسو د استدلال هنر په دې خاطر غندئ ځکه چي باور لرئ چي د دې طریقې په چوکاټ کي یو څوک کولای سي چي شیان ښه او یا بد وښیي؟ که چیري لومړی دلیل وي، له دې را وروسته موږ باید داسي خبري و نه کړو چي باید وې کړو؛ او که چیري دلیل ئې دوهم ټکی وي، نو بنا موږ باید هڅه وکړو چي ښه بیان او خبري وکړو». د دغو خبرو د اورېدو سره سم چاریکیس سور او شین سو او سقراط ته ئې وویل: «څرنګه چي ته تل داسي ښیي چي د هغو شیانو په اړه بې خبره یې چي اسانه، روښانه، او څرګند دي، موږ تا له ځوانانو سره په هره برخه کي له خبرو کولو څخه منع کوو».

سقراط په جواب کي وویل: «همدا کفایت کوي. مګر ما ته وواياست چي تر کوم عمر پوري خلګ ځوانان ګڼل

کېږي، ځکه نه غواړم چې تر ابده پورې په ابهام او تردید کې واوسم». چاریکیس وویل: «تر هغه وخت پورې چې هغوی سنا ته د غړیتوب حق پیدا کوي. په بل عبارت، تر دیرش کلن لاندې د هیچا سره خبرې مه کوه». دلته سقراط ور غبرګه کړه: «څرنګه! که چیرې زه له یو دوکاندار یا کسبکار څخه چې دېرش کلن نه وي یو څه رانیسم، ایا زه اجازه نه لرم چې له هغه څخه د قیمت په ارتباط پوښتنه وکړم؟» چاریکیس په جواب کې وویل: «نه، زما مطلب دا نه وو. مګر زه حیران نه یم چې ولې تا له ما څخه دا سوال وکړ، ځکه دا ستا عادت دئ چې د داسې مسایلو په باب ډېرې پوښتنې وکړې چې په جواب ئې ښه پوهېږې». سقراط زیاته کړه: «که چیرې یو ځوان په کوڅه کې زما څخه وپوښتي چې چاریکیس چیرته اوسېږي، ایا زه باید هغه ته جواب ور نه کړم؟» چاریکیس په جواب کې وویل: «نه، زما مطلب دا هم نه وو». دلته سریتیاس د هغوی په خبرو کې ورګډ سو، او وې ویل: «سقراطه، په راتلونکې کې، ته اجازه نه لرې چې د ښار له کسبکارانو، بوټونو جوړونکو، بنایانو، پېښانو، او نورو حرفوي کسانو سره کوم چې ته ئې تل د ژوندانه واقعي مثالونه بولې، او څوک چې زه ګومان کوم چې ستا له بحثونو څخه ستړي دي، خبرې او مباحثې وکړې». سقراط ور غبرګه کړه: « زه باید هغه نتایج او اخیستني هم حذف کړم چې زه ئې له دغو بحثونو او خبرو څخه تر لاسه کوم؛ له دې وروسته د عدالت، تقوا، د ښو او مقتي خلګو او نورو ښو خبرو سره هیڅ ډول رابطه او تړاو ونه لرم؟» چاریکیس وویل: «هو، هو، او زه تا ته سپارښت کوم چې د هغو ګوروانانو سره هم هیڅ ډول مراوده او رابطه مه ساته چې د خلګو غواووې او ګورم ساتي؛ او ګوره سقراطه، ته هم پام کوه چې خپل غوایي او رمه در څخه ورکه نه سي!» دغه وروستۍ جمله داسې ښکارېده چې سریتیاس او چاریکیس د سقراط هغو اظهاراتو خپه کړي ول چې د هغوی د حکومت پر خلاف ئې کول. هغه دا چې سقراط هغوی د هغه سړي یا ګوروان سره مقایسه کول چې خپل ګورم ئې تباه کړی وي.

موږ ولېدل چې سریتیاس تل د سقراط لېدو او مجلس ته ورتلی، او په دې هم پوه سوو چې د یو بل په اړه ئې څه مفکورې لرلې. برسېره پر دې، زه دا زیاتول غواړم که چیرې زموږ یو څوک نه خوښېږي، د هغه په باب د یو څه زده کول ګرانېږي. نو که چیرې سریتیاس او السیبیادیس د سقراط له مجلسونو څخه څه نه وي حاصل کړي او ښه اصلاح سوي نه وي، دا پر دې دلالت کوي چې هسې هم د هغوی سقراط نه خوښېدی. هر کله چې هغوی د سقراط سره مجلس کاوه، تل ئې غوښتل چې د هغو خلګو سره هم باندار وکړي چې په حکومت کې ئې کارونه کول، ځکه هغوی پرته له

حکومت کولو څخه بله هيڅ طرح نه لرله. دا لاندي مثال به هغه څه تصديق کړي چي دلته ئې ويل غواړم. په تېره بيا، هغه مجلس چي السيبياديس د پيريکليس سره درلود. پيريکليس گورنر وو. که څه هم هغه په دې وخت کي شل کلن لا هم نه وو، خو د ښار لومړی شخصيت وو. بحث د قانون پر ماهيت باندي راڅرخېدی.

السيبياديس وويل: «پيريکليس، ما ته قانون توضيح کړه چي څه شي دئ؟ ځکه زه اورم چي خلگ هغه څوک ستايي چي د قانون مراعت کوي، بنا زه تصور کوم چي دغه ستاينه به د هغو کسانو په ارتباط اظهاره نه سي چي په دې نه پوهېږي چي قانون څه شی دئ». پيريکليس په جواب کي وويل: « ستا خوشحاله کول اسانه کار دئ؛ قانون هغه څه دئ چي د خلگو د عمومي جرگې د موافقې په نتيجه کي منل او وضع سوی وي. مانا داچي اعلان وسي چي څه بايد وسي، او څه بايد و نه سي». السيبياديس زياته کړه: «اوس نو راته ووايه چي ايا هغوی هغه څه وضع او امر پرې کوي چي ښه دي، او يا څه چي بد دي؟» پيريکليس وويل: «يقيناً، هغه څه چي ښه وي». السيبياديس زياته کړه: «هغه شي ته به ته څه ووايې چي د ښاريانو سيتېزن يوه وړه ډله ئې وضع کړي، مانا په هغو دولتونو کي چي پرگنې حاکمي نه دي او يا تسلط نه لري. په بل عبارت، هلته ټولو خلگو ته د يوې

کوچنۍ ډلي لخوا، چي ملي قدرت ئې په قبضه کي وي، امر کېږي». پيريکليس وويل: «زه به هر هغه څه ته قانون ووايم چي دوی ئې امر کړی وي؛ ځکه قانون پرته له هغه بل شی نه دئ پرته له هغه څه چي يو باچا او يا حاکم وضع کړی وي». «که چيري يو مستبد يو شی وضع او يا يې امر وکړي، ايا هغه هم قانون دئ؟» پيريکليس وويل: «بلې هو، هغه قانون دئ». السيبياديس ادامه ورکړه او وويل: «نو بيا، تشدد او بې عدالتي څه شيان دي؟ ايا دا دې ته نه پاته کېږي چي يو قوي کس يو بل کمزوره سړی دې ته اړباسي چي بايد اطاعت ئې وکړي، البته نه پخپله خوښه او رضائيت، بلکي يوازي د قوې په زور؟» پيريکليس وويل: «زما په نظر همدا خبره ده». السيبياديس ادامه ورکړه او وې ويل: « هغه حکمونه او اوامر چي د يوه باچا له خوا، البته پرته د پرگنو ستېزن له رضائيت څخه، جوړېږي او عملي کېږي، ايا هغوی به مطلقاً غير عادلانه نه وي؟» پيريکليس په جواب کي وويل: «زه همداسي فکر کوم، او نه سم کولای چي ووايم چي هغه حکمونه چي د يوه باچا له خوا، البته پرته د پرگنو له رضائيت څخه، صادرېږي، قانون وبلل سي». السيبياديس بيا وپوښتل: «هغه څه چي د مهمو او قدرتمنو سيټېزنو لخوا، البته د عامه خلگو له رضايت څخه پرته، وضع کېږي، کټ مټ تشدد او زورزياتی نه دئ؟» پيريکليس په جواب کي وويل:

«په دې کې هيڅ سوال نه ځايېږي. په عمومي توګه، هر هغه حکم او امر چې د خلګو له رضائيت څخه پرته تصويب او صادرېږي، يو تشدد او زورزياتی دئ، نه يو قانون».

السيبياديس بيا وپوښتل: «او هغه څه چې خلګ تصويبوي، البته پرته د مشرانو له تصويب او رضائيت څخه، هغه هم تشدد حسابېږي، نه قانون؟» پيريکليس په جواب کې وويل: «په دې کې هيڅ شک نسته، همدا شان ده. مګر کله چې زه ستا پر سن وم، ما هم کولای سوای چې ګرده دغه شان مشکلات حل کړم، ځکه هله همدا زما کار او کسب وو چې په دغو خبرو پسې وګرزم او پوښتنې ګروېږنې پسې وکړم، عيناً لکه څنګه چې اوس يې ته کوې». السيبياديس په نارو سو او وې ويل: «په خدای قسم، چې زه به ډېر خوشحاله وای که چيري ستاسو سره مي په دې باره کې خبرو ته ادامه ورکړې وای، ځکه تاسو په دې مسلې باندې ښه پوهېږئ.» همدا د دوې خبري وې.

کله چې سريتياس او السيبياديس درک کړه چې له سقراط څخه ئې څه زده کړل او ځانونه ئې اصلاح کړل، او يا ئې د نورو سيتيزنانو (ښهروندانو) په مقابل کې تفوق تر لاسه کړ، هغوی نور ډېر کم د سقراط سره پاته سول، ځکه د سقراط له مجلس او بحث څخه ئې چندان ښه نه راتله. هغوی هله خوابدي سول چې سقراط هغوی د ځينو عيبونو او کمزوريو په خاطر ملامت او توبيخول؛ نو ځکه هغوی ډېر ژر ځانونه په حکومتي کارونو کي لګيا کړل. حقيقت دا دئ چې هغوی پرته له دې څخه بل هدف او طرح هم نه لرله. د سقراط معمول او دايمي ياران کرېټو، چيريفون، چيريکرېټس، سيمياس، سيبس، فيدون، او ځيني نور ول؛ له دوی څخه يوه هم د سقراط سره په دې خاطر ياري او ناسته ولاړه نه کوله چې دوی دي خامخاد بلاغت او فصاحت خاوندان سي. هغوی نه غوښتل چې له همدې بلاغت او فصاحت څخه د خلګو په جرګو او يا د عدالت په محکمو او د قاضيانو په مخکې ترې کار واخلي، بلکي هغوی غوښتل چې ښه او نېک خلګ سي، او په دې ځان پوه کړي چې د خپلې کورنۍ، مستخدمينو، خپلوانو، انډيوالانو، او خپلو هم ښاريانو سره څرنګه چال چلند وکړي. هغوی ګردو معصوم او بې ضرره ژوند کاوه. که چيري موږ د هغوی ژوند په ځوانۍ کي او يا په پاخه عمر کي وګورو، موږ ته به دا څرګنده سي چې هغوی هيڅکله په بدو اعمالو ککړ نه ول؛ حتی هغوی لږترلږه داسي ښودلې هم نه وه چې بد دي وکړي او يا حتی په بدو کولو دي مظنون وي.

مګر د سقراط مدعيانو ويل چې هغه ماشومان له خپلو والدينو څخه کرکي کولو ته تشويقول، هغوی ته ئې داسي باور ورکاوه چې دی د تعليم ورکولو په فن کي د هغوی د والدينو په پرتله زيات قابليت لري. هغوی ته به

ئې ويل چې قانون اجازه ورکوي چې يو څوک د خپل پلار لاسونو او پښو ته ځنځيرونه واچوي، خو په دې شرط که هغه د خپل پلار لېونتوب او جنون تثبيت کړای سي. هغه دوی ته ويل چې نو بنا عدالت او انصاف دا هم ايجابوي چې يو عاقل او د عالي احساساتو خاوند کولای سي چې يو بل ناپوه او د کم عقل سړی په ځنځيرونو کې بند کړي. البته، زه نه سم کولای چې ووايم چې سقراط دې يوه داسې خبره هم کړې نه وي؛ مگر ښايي هغه په دې مفهم باندې نه وه کړې چې تهمت لگونکي ئې فهمول غوښتل: سقراط کاملاً پوهېدی چې له دې خبرو څخه د هغه مطلب څه وو. هغه يو وخت ويلي ول: هغه څوک چې ادعا کوي چې نور خلگ دي د هغوی د جهالت او ناپوهي په خاطر په ځنځيرنو کې بند کړای سي، بايد د همدې دليل په وجه خپله هم ځان د هغو خلگو په واسطه په ځنځيرونو کې بندولو ته تسليم کړي چې تر ده زيات پوهېږي. سقراط اکثرا د حماقت او جهالت تر مينځ توپيرونو ته گوته نيوله. هغه په ښکاره ويل چې احمقان او لېونيان بايد په ځنځيرونو کي وتړل سي، ځکه دا هم د هغوی په گټه دی او هم د هغوی د ملگرو. خو هغه خلگ چې د شيانو او مسايلو په ارتباط جاهل دي هغوی بايد پوه سي، او بايد يوازي د هغو خلگو په واسطه تعليم ورکړه سي چې خپله په څه پوهېږي.

د سقراط مدعيانو ويل چې هغه نه يوازي خلگو ته دا ښوده چې له خپلو والدينو څخه کرکه ولري، بلکي له خپلو نورو رشتو څخه هم کرکه ولري؛ ځکه هغه ويلي ول که چيري يو سړی ناروغه سي، يا په يوې قانوني دوسيې کي لتاړ سي، د هغه خپلوان به له هغه سره مرسته و نه کړي، بلکي د هغه سره به طبيبان او وکيلان کومک وکړي. تهمت لگوونکو دغه راز اضافه کوله چې سقراط د ملگرو په ارتباط ويل که چيري موږ د دې وس و نه لرو چې د يوه چا خدمت وکړو، بيا نو د نورو په مقابل کي يوازي د ښه نيت درلودل هيڅ گټه د سړي له پاره نه لري. او يوازي بايد هغه انديوالان با ارزښته او مهم وگڼو کوم چې پوهېږي چې څه شی زموږ له پاره ښه او گټور دي. پر سقراط باندي تور لگوونکي وايي لکه څنگه چې سقراط ځوانان دې ته تشويقول چې دی تر ټولو نورو خلگو هوښيار او پوه دئ، نو بنا هغوی ته ئې ور فهمول چې ټول نور خلگ د ده په مقايسه هيڅ دي. هو، زما په ياد دي چې کله به هغه په همدې ترتيب د والدينو، ملگرو، او خپلوانو په ارتباط خبري کولې؛ مگر د دې تر څنگ به هغه ويل، که چيري زه اشتباه و نه کړم، کله چې روح، البته په روح کي ټول فهم او پوهه ځای لري، له بدن څخه ووځي، موږ سمدستي جسد خاورو ته سپارو؛ حتی که چيري همدا جسد زموږ د ډېرو نژدو خپلوانو هم وي، موږ هڅه کوو چې ژر

ترژره ئې په ښه سلوک له مخه ایسته کړو. برعلاوه، که څه هم پر هر چا باندي خپل بدن ډېر ګران وي، خو موږ پرته له کوم ډول وسواسه ځانته ټول هغه شیان چي اضافه او پالتو بلل کېږي له ځانه ایسته کوو، له همدې وجې موږ خپل وربښتان او نوکان اخلو، موږ خپلي زخمي او دانې لیري کوو، او موږ خپل ځانونه د جراح چړې ته تسلیموو، او سوځېدل او پرې کېدل زغمو؛ او وروسته د سخت درد او سوي سره سره، موږ مجبوره یو چي هغوی ته پیسې هم ورکړو. همدا راز موږ ناړي تو کوو ځکه زموږ خولې ته نور کومه ګټه نه رسوي، او موجودیت ئې په خوله کي عذاب وي . مګر د سقراط مقصد له دې څخه دا نه وو چي یو سړی باید خپل پلار ژوندی په قبر کي ښخ کړي، او یا موږ باید خپل لاسونه او پښې پرې کړو؛ خو د هغه مقصد دا وو چي موږ ته دا را زده کړي چي هغه څه چي بې فایدې وي خوار او ټیټ هم وي. هغه غوښتل چي هر څوک دې ته وهڅوي چي ځان اصلاح کړي او نورو ته ګټور او مفید واقع سي. د دې له پاره چي موږ د خپلو پلرونو، ورونو، او خپلوانو له خوا احترام سو، موږ نه باید پر خپل اصل، نسب، او قوم باندي تکیه وکړو، نه هم باید هیڅکله له دې هڅي څخه ځان تېر او اوږه خالي کړو چي باید خپلو هغو دوستانو ته ګټور تمام سو چي د دوستی او احترام ګټل ئې غواړو.

تهمت لګوونکي ویل چي سقراط دونه شریر او بدنیته وو چي د پخواني مشهورو شاعرانو هغه بیتونه او اشعار ئې انتخابول چي تر ټولو بد تعلیم او هدایات پکښې نغښتي ول، او دغه اشعار به ئې په خورا هوښیاری کارول، څو په دې ترتیب په ځوانانو کي د بې عدالتی، تشدد، شرارت اوګناه نوغی کښېږدي: لکه د هېسیود دغه بیت:

«کار او زحمت مه ملامتوئ، بلکي بېکاري او لټي پړه وبولئ».

هغوی ادعا کوله چي سقراط غواړي له دې بیت څخه دا ثابته کړي چي د شاعر هدف دا دئ چي موږ باید هیڅ کار غیر منصافانه او ټیټ و نه ګڼو، که چیري هغه کار وکړای سي چي موږ ته یو تفوق په لاس راکړي. البته، دي خبري د سقراط له فکر سره ډېره زیاته فاصله لرله. هغه تل تدریس کاوه چي کار او بزنس د خلګو له پاره هر وخت ګټور او شرافتمندانه دئ، او بېکاري او لټي شرارت او فسق دئ، هغه به ویل هغه څوک چي ځان په هر څه چي ښه وي لګیا کاندي، هغوی واقعاً مشغول او په کار لګیا دي؛ مګر قماربازان او عیاشان او ګرده هغه کسان چي کار او روزګار نه لري، او صدمې او شرارت ایجادوي، هغوی بېکاران او لټان دي. اوس نو، د سقراط له دې درک سره سم، ایا دا به سمه او حقیقت نه وي چي وویل سي:

«کار او زحمت مه ملامتوئ، بلکي بېکاري او لټي پړه وبولئ»؟

تهمت لګوونکي، دغه راز، ویل چي سقراط بار بار د هومر له کتاب څخه د یولیسیس یوه وینا یادوله؛ او هغوی تورلګاوه چي سقراط به ځوانانو ته تدریس کاوه چي شاعر سلامشوره راکوي چي غریبان باید وډبلول سي او د عامه خلګو سره باید بد چال چلند وسي. مګر څرګنده خبره دا ده چي سقراط به هیڅکله هم د شاعر له بیتونو څخه دا ډول وحشي او غیرطبیعي استنتاج او اخیستنه نه وای کړې. ځکه چي هغه به د ځان پر خلاف استدلال کولای، ولي هغه تر بل هر چا خپله نېستمن سړی وو. نو بنا، څه چي د سقراط مطلب وو هغه یوازي دا وو، هغه خلګ چي نه د سلامشورو دي او نه هم د اجرآتو صلاحیت او قابلیت لري، هغه چي نه د ښار په کارونو کي د سلا مشورې جوګه دي او نه هم په پوځ کي د خدمت کولو لایق دي، خو له دې سره سره بیا هم متکبر او ګستاخ دي، هغوی باید پر سد سي، که څه هم زیاته شتمني او ثروت ولري. همدا د سقراط د خبري اصلي مطلب او مانا وه، ځکه پر هغه باندي غریبان او کارګران سخت ګران ول، او د ګردو خلګو سره ئې مهذب او انساني چال چلن کاوه؛ په دې اندازه چي هر وخت به د هغه سره سلامشوره کېده، که به د اتېن خلګ ول یا بهرنیان، هغه به له هیچا څخه د خپلو سلامشورو او سپاربښتونو په مقابل کي څه نه اخیستل، او خپله پوهه او عقل به ئې په وړیا توګه له خلګو سره شریکول، هیڅ انعام او معاش به ئې نه غوښت، او دا کار ئې د ګردو نړۍ والو سره کاوه. په داسي حال کي هغه خلګ، چي د ده د سخاوت په وجه شتمن کېدل، هغوی بیا وروسته د ده په شان سخي نه ول، او پر نورو خلګو باندي ئې هغه شیان په ګرانه خرڅول چي دوی ته وړیا په لاس ورغلي ول. څرنګه چي هغوی د سقراط غوندي اعتدالي سلوک نه لاره، د هغو خلګو سره به ئې خپل علم او پوهه نه شریکول چي د رانیولو پولي واک ئې نه لاره. لنډه دا چي سقراط د اتېن ښار په ګرده نړۍ کي مشهوره کړ؛ لکه څنګه چي ویل کېږي، لیچیاس د سپارتا ویاړ او برم وو، ځکه هغه پخپل لګښت د ټولو هغه بهرنیانو خیال او پالل کول چي د جیمنوپایدیس په جشنونو کي به ئې ګډون کاوه. دغه راز دا به هم مناسبه وي او ښایي لا حقیقت ولري چي د سقراط په ارتباط وویل سي چي هغه د اتېن ویاړ او جلال وو، ځکه هغه د خپل ټول ژوند په جریان کي په دومداره توګه خپل ښه توب او تقوا خپرول، او هغه ګردي نړۍ ته خپل بې حسابه او بې بها علمي ثروت او خزانه پرانیستلې وه، او هیڅوک ئې له خپل مجلس څخه نه محروم کړی، مګر دا چي لا متقي او فاضل، او د عزت او ننګ په اصولو او کارونو کي لا اصلاح سوی نه وي. نو زما په نظر که چیري له سقراط سره د هغه د قابلیت او اهلیت مطابق چال چلند سوی وای، دوی به خامخا

هغه په عامه توګه محترم او ښاغلی بللی وای، نه دا چې هغه ئې په ناحقه او ننګین ډول په مرګ محکوم کړ. څکه سوال دا دئ چې قانون د چا پر خلاف د مرګ حکم کوي؟ ایا دا حکم د غلو، د دارمارانو، د هغو خلګو پر ضد چې مقدساتو ته سپکاوی کوي، او د هغو پر خلاف چې ازاد خلګ خرڅوي، نه دئ؟ ایا موږ د نړۍ په کوم ګوټ کي د سقراط غوندي سړی پیدا کولای سو چې د ده په شان له جنایاتو څخه مبرا او پاک وي؟ ایا د هغه په باب ویلای سو چې هیڅلکه ئې د دښمن سره ارتباط او مراسلات نه لرل، هیڅکله ئې فتنه او ښورښ نه لمساوه، هیڅکله د بغاوت عامل نه وو، او یا د دغه راز نورو بدو او شریرو اعمالو پاروونکی نه وو؟ ایا څوک تور لګولای سي چې سقراط کله هم د هغه ثروت او جایداد غصب کړی وي، او یا ئې هغه ته لږترلږه کوم زیان ورسولی وي؟ ایا کله هم هغه د دغو شیانو په ارتباط حتی مظنون ګڼل سوی وو؟ اوس نو، څرنګه ممکنه ده چې سقراط په هغو جنایاتو محکوم سي چې په تورن سوی وو، لکه څنګه چې تهمت کوونکی وایي چې هغه پر خدایانو باندي ایمان نه لاره؟ حال دا چې شواهد ښیي چې سقراط د خدایانو یو مخلص او پاک ستایونکی وو. د دې پر ځای چې د ځوانانو مفسد او بې لاري کوونکی وي، البته څرنګه چې تور لګوونکی ادعا کوي، سقراط تل هڅه کوله چې خپل ملګري د ګناه، عصیان، او غرایزو له منفي دایرې او طلسم څخه وژغوري، او کوښښ ئې کاوه چې هغوی د تقوا په بېکرانه عشق او الهام کي راګیر کاندي، او دغه راز ئې د فامیل او دولت په ګاڼه او برکت کي را ونغاړي؟ همدا واقعیت وو (همدا حقیقت وو، ایا څوک له دې څخه انکار کولای سي؟)، ایا دا مسلم او حقیقت نه وو چې جمهوریت هغه ته ښځي پورورۍ وو، او حق دا وو چې همدې دولت هغه ته تر ټولو جګ او عالي افتخار او عزت قایل سوی وای؟

نور بیا ...

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- درواغ ویل هم هوښیار سړی غواړي. ښه دا ده چې احمق سړی تل رشتیا وواییي.
- ضرورت انسان د انتخاب د عذاب څخه ژغوري.
- د ژوند ماښام خپل څراغ د ځان سره راوړي.
- هغه څوک چې خپل تېر ژوند ئې په یاد نه وي د هغه په تکرارولو محکوم دئ.
- هنر هغه درواغ دي چې موږ ته حقیقت را پېژني.
- ښکلا تر زړو لا ژر غل تحریکوي.
- یوه ورځ د زمري ژوند د پسه تر سلو کالو ژوند ښه دئ.

۱۹۹۷/۱۲/۲۴م

دوهم لیک

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

ښاغلی حاجي ظاهرجانه، السلام علیکم!

ستا کورنۍ ته هم زما سلام ورسوه، ستا د ۱۹۹۷/۱۱/۲ نېټې خوندور لیک د چمن له لارې پر ۲۰/ ۱۲/ ۱۹۹۷ راورسېدی. شکر چې جوړ او روغ وې. دعا کوم چې روغ او جوړ اوسې او د ناخوالو سره مخامخ نه سې. که چیري دا تمنا پوره نه سي نو ستا بری په هر صورت کې له خدای تعالی څخه غواړم.

ستا خط چې هم ئې صوري ښکلا درلوده هم ادبي نزاکتونه او د "اثرالآباء یظهر فی الابناء" مصداق وو په لوستلو ئې خوښ سوم او د تېرو زمانو په یاد کې ئې واچولم.

تا په خپل مکتوب کې لیکلي دي چې له بده مرغه دا وخت د فهم سطحه کښته راغلې ده. په عمومي صورت زه درسره موافق یم او څکه چې عامه سطحه بنیاد او بنسټ جوړوي. که هلته معرفت کم سي نو واقعاً د خواشینۍ خبره ده. اما په خاصه توګه بیا داسي نه ده. که په هیواد کې دننه د مکتبو او مدرسو دروازې تړلي پاته سوي دي بیا په مقابل کې د ډېرو راډیوګانو خولې او د اخبارو، جرائدو او کتابو پاڼې تر پخوا زیات په تبلیغ او اشاعت لګیا پاته سوي دي او د هیوادوالو د پراګندګۍ سره له یوې خوا او د عالم د سیاسي او مادي منافعو د متضادو کششونو د اغېزې په نسبت د خاصو خلکو سیاسي تحرک او بیداري، د حقایقو درک د ستونزو له پاره د حل د لارو چارو پیدا کولو ډول، د ټولنیز ژوندانه په واقعیت پوهېدل او د هغه سره مینه لرل د نړۍ د اجتماعي سلوک لیدل او پېژندل زیات سوي دي او که عام بیرته پاته والی پوره جبیره نه کړای سي تر یوې برخي هغه پسمانده ګي جبیره کوي او اصلاً که د عامو خلګو کتابي فرهنګ انکشاف نه وي کړی د زمانې سړې – تودې ئې ډېري لیدلي او ترخې تجربې ئې زیاتي کړي دي. اوس به یقیناً د خپل خیر او شر په تشخیص کې تر پخوا بیرته پاته نه وي.

دا نو د ډانګ حرکت سو. که ئې يو سر پورته تللی وي بل سر ئې ضرور پر مځکه لګېدلی دئ. په هر صورت ستا خبره سمه ده ځکه د ځينو ضايعاتو جبيره امکان نه لري. ستا په ليک کي بله خبره دا ده چي په دا وروستنيو تحولاتو او انقلاباتو کي د پخوا پر خلاف تر بازاريانو د کليوالو پله درنه او ليکه پاته سوې ده.

يو اصل چي د نړۍ والو ورباندي اتفاق دئ هغه دا دئ چي اصلاً واک په خلګو پوري اړه لري. خلګ د خپلو مصلحتونو له پاره چي کومه لاره غوره کوي هغه لاره غوره ده. خلګ د خپلو چارو مطلق کالخوايان دي او هغه ډول حکومت چي دوی غواړي هغه وړ حکومت دي د خپلو ستونزو د حل له پاره وټاکي، نه دا چي څه ډول حکومتونه وغواړي خلګ په هغه ډول له پخوا څخه په يوه جوړ سوي چوکاټ او قالب کي په زوره ننباسي. که دغه اصل څوک ومني نو د حکومت له پاره په چوکاټ او اډانه جوړولو کي هر کله بايد د کليوالو نظر ته ډېر پام وسي او د هغو ونډه په نمايندګي او حکومت کي زياته رعايت سي، ځکه په ودان (تر هرج و مرج پخوا) افغانستان کي تر ۳۵ زره زيات کلي موجود وه او د هرو زرو کليو په مقابل کي حتی دوه ښارونه يا ښارګوټي هم نه وه. پر دغه سربېره د توليد اصلي برخه غنم، وريجي، اوربشي، جواري، مېوه، ترکاري، غوښه، غوړي، لبنيات، پوست، وړۍ، قاليني، قره قل، پنبه هم د کليوالانو پر غاړه ده، ماليه هم دوی ورکوي. د ګمرک محصول چي بازاريان ورکوي دا اصلاً ماليه نه ده او که ماليه هم وي نو دغه غيرمستقيمه ماليه ده چي کليوال او مستهلک ئې د بازاري تاجر پر لاس ورکوي او پر مصرفوونکي اچول کېږي.

عسکري هم دوی کوي. د وطن دفاع او جهاد هم د دوی پر غاړه دئ او وو که چيري د حکومتونو او دولتونو قدرت له خلګو او ملتونو څخه نشات کوي نو په افغانستان کي ډېره طبيعي خبره ده چي بايد د کليوالو برخه لو وي. او دا چي اقليت د اکثريت پر اوږه ورسپرېږي يا ورسپرول کېږي دا ناروا کار دئ او يوه لو بې عدالتي ده او په افغانستان کي هر کله دا کار سوی دئ.

يو وخت مرحوم بېنوا يوه فکاهي ليکلې وه، داسي چي: چا پوښتنه وکړه:

آيا دا رشتيا دي چي د انسانانو تر حکومت پخوا آسانو حکومت کاوه؟

چا جواب ورکړ چي يا. حکومت تل د خرو وو.

خو د اکثريت د خوښې د حکومت هم دا مفهوم نه دئ چي و اکثريت ته منسوب هر فرد پخپله حکومت وي او څه چي د ده زړه غواړي هغه کوي.

دا خبره هم داسي يو ظلم دئ لکه څه ډول چي اقليت د اکثريت پر څټ کښېنول سي. اصل مطلب دا دئ چي د نظم جوړولو له پاره د دوی نظر مهم دئ.

اقلیتونه هم خپل حقوق او رعایتونه لري اما د اکثریت ځای هیڅکله نه باید وغواړي یا ئې ونیسي. که د اکثریت هر فرد د قانون اجراء په خپل لاس کي ونیسي او ځان قانوني وبولي یا تر قانون ئې بالا وبولي دا نو ضدیت دئ. انارشي ده. ځان ځاني ده. د زنګله قانون دئ. زور بالای زور دئ. نه ټولنیز نظم جوړوي، نه د کوم مدنیت اساس ایښودای سي. د دنیا هر ترازو هم هیڅ وزن او تول نه لري.

نو که پخوا کلیوالو ته په نمایندګي کي سمه برخه نه وه ورکول سوې، حکومت نماینده حکومت نه وو او دا چي بیا وروسته هر کلیوال ځان قانون باله دا هم هیڅ حقوق او منلې بنه نه لري. بلکي د تېرو زمانو یو غیر مدني میراث دئ چي د حاضر وخت پر موډ نه دئ برابر که دا تطبیق سي تلفات به ئې زیات وي ځکه دا نو د جهاني سېلاب په مقابل جهت کي لامبو وهل دي او انا که هر څه سرزوره هم وي سېلاب ئې بالاخره په خپله مجری کي له ځانه سره وړي.

که چیري په مرګ نیول په تبه راضي کېږي دا رضا ډېره کم دوامه او زودګذره رضا ده، ځکه تبه علت دئ. مریضي ده. خوړ دئ او په علت کي رضایت دوام نه کوي. وړي ئې خولۍ نه لري؟ ته ځان ته وګوره تر چا کم یې. خولۍ نه لرې؟ شکر هر څه دي پوره دي. آیا خولۍ نه لرې؟ لڅ یې؟ خولۍ نه لرې.

دا د هغه غریب پلار دلایل وه چي د اختر په شپه ئې خپل ناراضي زوی ته ویل. کله چي به ئې زوی د بډایانو د زامنو د بوټو، کوټو، کالیو، لنګیو او صدریو شکایت خپل پلار ته راووړ، سړی دا نه سي منلای چي د پلار دغه د خولۍ منطق به د زوی له پاره قناعت بخښه وه. د مجبوریت خبر بېله ده.

امنیت راوستل که څه هم د حکومتونو لومړنی فرض دئ اما د هر څه غاړه نه په وزي:

تل آرام ســــره پراته وي د ګــــور مړي
دژوندو چي شور و شر نه وي هم هیڅ
(خوشال خان)

د دې زمانې د حکومتو دا ذمه واري ده چي په اختلاف کي اتفاق راولي، هغه هم نه د زور او جبر له لاري، په تلون کي یک رنګي راولي په تدبیر. په تضاد کي وحدت تامین کړي په حکمت عملي. موږ په ځلیرویشت ساعته کي دودېرش ځله الحمدلله رب العالمین وایو او که چیري انسان د خدای تعالی د خلافت ادعا ولري نو د خدای پر مخکه په دغه ډول پراخ نظري حکومت کول ورته په کار دي. زموږ د کتاب فاتحه د فاتحې په صورت کي ده چي څوک او څوک ئې د قرآن اجمال ګڼي. هلته رب المؤمنین یا رب المسلمین نه دئ راغلی البته دا مقولې تر رب العالمین لاندي دي.

خو د رب العالمین وصف عام او شامل دئ او په هغه ډول پېرزوینه او دوا داري باید حاکم حکومت وکړي. موږ د

ورځي یوولس واره په لمانځه کې دغه قرآني اماثوره دعا وایو: الهم ربنا آتنا فی الدنیا حسنة و فی الاخرة حسنة و قناعذاب النار. د دې مفهوم دا نه دئ چې یوازې د ګور او کفن مسایل د ژوند تر سهولتونو رادمخه کړو. په داسې حال کې د دنیا ښادی، د دنیا له پاره اولویت لري او ترجیح لري. اما البته د دوږخ له اوره څخه د ځان ژغورلو په شرط.

دا چې موږ ټول شپنیان یو او د خپل رعیت له حاله پوښتل کېږو. سرې ته صلحاً سلف نېک کردار او ښه نیتونه ور په زړه کوي.

کله چې حضرت عمر بن عبدالعزیز د هغې بوزې له بابته چې پښه ئې د ولې په اومه پله کې بنده سوې او ګوډه سوې وه ځان مسئول باله یا کله چې د شپې په تیاره کې ئې د دولت د یوه مسئول سره د مملکت د چارو په باب خبرې و ځراغ ته کولې او کله چې د صحت رسمي برخه خلاصه سوه او شخصي مجلس شروع سو نو ئې ځراغ مړ کړ او په تیاره کې ئې خبرو ته ادامه ورکړه.

مقابل طرف چې کله پوښتنه ځني وکړه دغه جواب ئې ورکړ چې د شخصي خبرو له پاره زه د بیت المال د ځراغ څخه د ګټې اخیستلو حق نه لرم. آیا د دې زمانې زرق و برق، رکاب و پایکش به خپل ښېل دلالت و نه لري؟

که څوک محتسب او مستحسن د فرض او واجب په درجه او منزله کې ودروي یا سنت (فردي او شخصي) د عمومي نظم او معاملاتو تر اصلاح مقدم کړي دا به آیا بدعت نه وي؟

شک نسته د لارې وهلو، قتل، غلا (عرفي) ځکه شرعي غلا په پټه باید وسي. په لځه داړه او غلا د قطع طریق تر حکم لاندې ده. د دغو منهیاتو مخ نیول دغسې د حکومت فرض دئ، لکه د عشر او زکات ټولول او د چرسو، تریاقو، هیروئینو منع کول منکر نه سي درلودای. اما د هغو علت او سبب پیدا کول او د هغه سره مبارزه کول پخپله مستقیماً د دغو جرائمو سره تر مبارزې کم اهمیت نه لري. د مرضونو له پاره لومړی وقایه فرض ده. د محیط کنټرول فرض دئ. د وجود تقویه فرض ده. واکسین لازم دئ او که تر دغو پولو ناروغی راواوړي. بیا نو دوا، دارو او علاج لازمېږي او که چیرې نوبت د مجرم و جزا ته ورسېږي هغه وخت هم د بشري کرامت رعایت په هیڅ صورت له نظره څخه د غورځولو نه سي کېدای.

تا د خپل لیک په سر کې لیکلي دي چې کشکي مي د ایمان خواست کړی وای. زه وایم تا خو د دې کار هیڅ ضرورت نه درلود، ولې به دې دا کار کاوه کوم چې تا ئې و کولو ته هیڅ ډول اړتیا نه درلوده:

سالها دل طلب جام جـم از ما میکرد
آنچه خود داشت ز بیگانه تمنا میکرد

ته خو شکر ایمان لرې او فطري ایمان دي لا هم هیڅ خلل نه دئ موندلی. نو څوک چې د هغه څخه د

تحصیل له پاره تلاش کوي کوم چي د ده سره موجود وي هغه ته تحصیل حاصل وایي او مطلقاً دا عمل باطل دئ نو تا به دغه باطل عمل پر څه کاوه.

د خپل لیک د خاتمې سره دي دا هم لیکلي دي چي: "که چیري تا ته زما د پلار (مرحوم) څه خاطرې او مقولې در په زړه وي هغه کله کله راته ولیکې دا به ښه وي".

زه چي ګورم په حاضر حال کي تر ټولو ځان زیات مستحق څوک چي د مرحوم شیخ صاحب په باب وږغېږي او تر ټولو مستحق چي ته باید د شیخ صاحب په باب واورې بل څوک په نظر نه راځي.

ځکه په ژوند کي ما د مرحوم حاجي عبدالغفور خان سره په سفر او حضر، هستي او نېستي کي اوږدې شپې ورځي تېري کړي دي او د هغه مرحوم په باب کي زما معرفت کامل او جامع نه وي. نسبتاً زیات ضرور دئ او یوازي فضلو اخندزاده که ژوندی وي حق تعالی دي صحت ورکړي او که مړ وي خدای دي جنت ورکړي، هم که چیري واک ولري د شیخ صاحب په باب د ږغېدو حق درلودای سي. حتی من وجهٍ به د ده معلومات تر ما زیات هم وي. اما نه د مرحوم حاجي عبدالغفور خان د شخصیت په ټولو او یا ډېرو بعدونو کي، ځکه نو زما هم حق دئ چي تا ته ستا د غوښتني په باب څه ولیکم او هم مي وظیفه ده چي دا کار وکړم او ځکه چي زما پېژندګلوي د مرحوم شیخ صاحب سر بالمقابله د ۱۳۲۴هـ ش څخه د هغه مرحم تر وفات پوري په دغه واټن کي لاس ته راغلې ده نو پر یوه ځای به دا ګرانه خبره وي چي هر څه را په زړه کړم او تا ته ئې ولیکم. دا کار به ورو ورو په اقساطو سر ته ورسوو. که داسي و نه کړو نو: مثنوي هفتاد من کاغذ شود.

مرحوم شیخ صاحب د نسب په اعتبار نجیب الطرفین وو. د پلار له خوا یوې تجارتي او په عین حال کي یوې علمي کورنۍ او د مور له طرفه د کندهار مشهور اخنددانو، اخندزادګانو، علماوو او استادانو ته منسوب وو. اما هغه د خپل عادت سره سم هیڅکله د خپلو نسبي یا خپلو حسبي افتخاراتو ذکر نه کاوه. د دغه عربي شعر د مفهوم مطابق:

لا تقل اصلی و فصـــلی ابدا
انما اصل الفتی ما قد حصل

ئې تل په دغو مواردو کي سکوت کاوه، حتی زما په اوږده معاشرت کي مي تر اوسه د هغه مرحوم د پلار نوم نه دئ زده. ځکه ده ئې هیڅکله ذکر نه دئ کړی.

د پلرګنۍ له خوا ئې د مرحوم عبدالحکیم خان سره چي د شیخ صاحب د تره زوی وو په چمن کي ډېر وخت ژوند کړی وو. عبدالحکیم خان د حاجي محمدامین او عبدالغني خان میوندي پلار وو او د خپلي پلرګنۍ په نیکانو کي ئې خپل اکا (محمدسرور اخندزاده مرحوم) د عبدالصمد اخندزاده پلار ته د

یوه واقعي شیخ او صوفي په دود عقیده درلوده.

مرحوم شیخ صاحب د خپلو ماماخېلو خصوصاً د خپلو ماماګانو د هغو زامنو سره چې د ده همزولي وه ډېر پاته سوی او حشر سوی دئ او په هغو ټولو کي ئې د مرحوم خیرو اخوندزاده نېکیو او اخلاقو ذکر ډېر کاوه چې پر خپلوۍ سربېره ئې اشنايي هم ورسره درلوده او بالاخره د خپلو ماماخېلو په هدیره کي ښخ سو او هغه هم ډېره ترخه ورځ وه.

تموتون کما تعیشون.

حادثه له دې قراره وه:

شیخ صاحب د لاقیده او ورګډ ژوندانه پلوی نه وو. همېشه به ئې د دوستانو یوه محدوده ټولګۍ درلوده او د هغه سره په ژوند کي به ئې د تکلیف احساس نه کاوه. له عامو خلګو تر ګډون ئې خلوت ډېر خوښ وو. نه په دې مفهوم چې ګویا له خلګو څخه ئې نفرت درلود. بلکي په دې مفهوم چې په آزادو انجمنونو کي د نزاکتونو رعایت مشکل وي او دغه خبري به دی په مضیقه کي اچاوه:

هر که پا کج میگذارد خون دل ما می خورم
شیشه نامـــــوس عالـــم در بغل داریم ما
(بیدل)

ځکه د مرحوم تفریح و خلوت ته وتل د محدودو دوستانو سره، کلي او باغ ته تلل یا په مېله کي د غرو سرو ته ختل وه.

د روژې لومړۍ ورځ یا د جمعې د تعطیل ورځ وه. ماښام مي پوښتنه ورځني وکړه چې څه باید وکړو. هغه ویل تاسي ډېر همت نه لرئ چې ووزئ. رشتیا ما چې د ملګرو سره مشوره وکړه یو هم د دباندي وتلو له پاره آماده نه وو. زه او مرحوم شیخ صاحب پاته سوو او د چهل زینو پر ختلو مو موافقه وکړه. ما ورته وویل چې زموږ کور په مخ کي دئ ته پر دغه لار راسه یو ځای به ځو. هغه راته وویل هو! د دې له پاره چې ته تر غرمې بیده سې؟ زه قطعاً نه درځم.

ما ورته وویل چې خیر ئو به د چهل زینو پر سر په دالانچه کي سره غواړو. هغه مرحوم زموږ ملګرو ته مخ راواړاوه چې ته دی وګوره. زه چهل زینو ته د دغه له پاره ورسره ځم چې د ده پر ورختلو وخاندم. دی بیا اوس د چهل زینو د دالانچې بیان کوي. ما ته ئې مخ راواړاوه او وئې ویل: "د محمداعظم پر کوټه به سره غواړو".

محمداعظم یو عملي سړی وو. په سرپوزه کي چې د زاړه ښار و خوا ته سړک ورګرځېدلی دئ د سړک په خوله کي ئې د غره و خوا ته کوټه وه او غالباً به د خروټو د کوڅې وو.

سهار تر هغه وخت ډېر دمخه چې زه باید سرپوزې ته تللی وای. محمدیوسف ویران راغی د کور دروازه ئې راوټکوله. زه راووتلم د رخصتۍ ورځ وه. د ده په لیدو مي تعجب وکړ. پوښتنه مي وکړه چې خیریت دئ؟ ده ویل شیخ

صاحب وفات سوی دئ. زه لکه برق چي ونیولم جټکه مي وخوړله. پورته وغورځېدم. ورته ومي ویل: یه. موږ لږ وروسته څلور زینو ته ځو. هورې مو وعده ده. هغه ویل زه جدي درته وایم چي مرحوم د زړه په ناروغي تېره شپه وفات سوی دئ.

سربېره پر اوړده ملګریتوب زه د شیخ صاحب د زړه په ناروغي د ده تر مرګ وروسته خبر سوم. مرحوم د هوړي خوړلو فوق العاده زیات عادت درلود، ځکه هوړه شرائین پراخوي او د وینو په جریان کي سهولت راولي.

یو وخت چي زه او شیخ صاحب په ۱۳۳۱ – ۱۳۳۲ کلو کي په کابل کي سره انډیوالان وو. زه هغه وخت ډېر ځوان وم. د ۲۶ – ۲۷ کلو وم بیا هم یو وخت داسي راغی چي زما د شپې خوب ورک سو او زه ئې په علت نه پوهېدم. یوه ورځ چي ما غوښي راوړي وې او مرحوم شیخ صاحب د کټوي مصالح جوړولې چي ګورم دومره هوړه ئې میده کړې ده لکه څوک چي پیاز میده کوي.

ما پوښتنه وکړه چي دا څه شي ده؟ ده ویل هوړه ده. ما ورته وویل دغه ډېره خشکه ده او زما د بې خوبۍ علت اوس ما ته رامعلوم سو. لطفاً که دا هوړه څه کمه کړې. مرحوم دا راسره ومنل او بیا ئې هیڅکله ډېره هوړه نه وراچول. اما دا ئې نه ویل چي زه د فشار په نسبت ضرورت ورته لرم او په مېلو کي چي به ئې خوړو ته زیاته هوړه وراچول ځکه چي هغه د هري ورځي خبر نه وه. په دوې درې هفتې کي به یوه ورځ وه. پر ما ئې هم بده اغېزه نه کول ځکه نو ما هم شکایت نه کاوه.

د مرحوم تر مړیني وروسته زه وپوهېدم چي دی مجبور وو د دوا په شکل ئې هوړه خوړل. اوس نو تاسي په خپله د هغه مرحوم د صبر، استقامت، تحمل او زغم اندازه له دغه څخه لګولای سئ.

جنتونه دي ئې په نصیب سي.
دا مضمون به بیا هم څېړو انشاء الله
ګر بمیریم عذر مـا به پذیر
ای بسا آرزو که خاک شده
په مخه دي ښه –الله دي مل سه.
دعاګوی –هاتف
* * *

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- هر څوک باید د خپلي بدبختۍ او د خپل خراب سرنوشت په وړاندي ودرېږي، ولي؟ ځکه نو بل کوم لوی دښمن سته چي باید سړی ورسره وجنګېږي؟
- ستر خلک د طبیعت غوندي ساده ژبه استعمالوي.
- که څوک په تېرو پسي ارمان ته ځان وسپاري دا کار دونه ضرر لري لکه خپل ځان چي د بیا رغېدو د امید څخه بې برخي کړي.

# (۱۰۰)

# نړیوال شخصیتونه

*****

لیکوال:
مایکل هارټ

اردو ژباړن:
محمد عاصم بټ

پښتو ژباړن:
عبدالنافع ثنا

## ۱۲- ګلیلو ګلیله

**(۱۶۴۲- ۱۵۶۴ع)**

د ساینسي تفکر په وده کي د لوی ایټالوي ساینسپوه ګلیلو ګلیلي تر ټولو لوی لاس دي. نوموړی په ۱۵۶۴ع کي د پیسا په ښار کي وزېږېد. په نوي ځواني کي چي د پوهنتون محصل وو، د اقتصادي ستونزو له امله ئې تحصیل پرېښود. خو بیا په ۱۵۸۹ کي ورته په پوهنتون کي د استادۍ دنده ورکړل سوه. څو کاله وروسته یې په پاډوا پوهنتون کي دنده تر لاسه کړه چي تر ۱۶۱۰ پوري هلته پاته سو. په همدې پړاو کي ئې اکثره ساینسي اختراعات راڅرګند سول.

د نوموړي لومړني اختراعات د میخانیک (میکانیکس) په برخه کي

راڅرګند سول. ارسطو نظر لاره چې درانه اجسام د سپکو اجسامو په پرتله په ډېره تېزۍ سره د مځکې خوا ته رالوېږي. نسل پر نسل پوهانو پر همدې یوناني فلسفه باور وکړ او هغه ئې سم مانه. ګلیلو د دې خبرې د آزمویلو پرېکړه وکړه. د آزموینو د یوې لړۍ په پایله کې ئې ژره معلومه کړه چې د ارسطو دا خبره غلطه ده. سمه خبره دا ده چې درانه او سپک اجسام په یوه رفتار مځکې ته لوېږي خو خبره په دې کې ده چې د هوا مزاحمت ئې رفتار اغېزمن کوي. (که څه هم دا روایت دومره باوري نه دئ چې ګواکې ګلیلو د دې آزمویني له پاره د پیسا د ښار د یوه کاږه منار څخه شیان راغورځول او تجربې ئې کولې).

د دې خبرې تر معلومولو وروسته ګلیلو یو قدم وړاندې واخیست. نوموړي په ځانګړي وخت کې د رالوېدونکو اجسامو له خوا وهل کېدونکې فاصله په دقت اندازه کړه او دا ئې معلومه کړه چې دا ځانګړې فاصله په دې بهیر کې د ټولو تېرېدونکو ثانیو له مربع سره متناسبه ده. دا اختراع (چې د دې تېزوالي یو بېلګه ایزه شرح وړاندې کوي) پر خپل ځای ډېره د اهمیت وړ ده. تر دې هم مهمه خبره دا وه چې ګلیلو وتوانېد د دې آزموینو پایلې د یوې ریاضیاتي قضیې په توګه بیان کړي په داسې حال کې چې پر ریاضیاتي قضیو او ریاضیاتي طریقو باندې ټینګار د نوي ساینس یوه ښکاره ښېګڼه ده.

د ګلیلو په اختراعاتو کې یوه مهمه اختراع د جمود قانون (Law of Inertia) دئ. تر دې مخکې خلکو فکر کاوه چې که په یوه مسلسل حرکت لرونکي جسم کې د بهر څخه حمایوي قوه له منځه ولاړه سي، نو هر متحرک شی په پای کې ساکت کېږي. خو د ګلیلو تجربو دا ثابته کړه چې دا عمومي نظر له یو مخه غلط دئ. هغه دا چې که مخنیوونکې (مزاحمتي) قوې لکه عایق مقاومت او نور نه وي، نو یو متحرم جسم به تر لا انتهاء پورې په حرکت کې وي. نیوټن دا مهمه نظریه خپل د حرکت د لومړي قانون له لارې له سره تصریح کړه او پر پیاوړو بنسټونو ئې ودروله. دا د طبیعي علومو د بنسټیزو نظریو څخه یوه ده.

د ګلیلو تر ټولو نه هېرېدونکې اختراعات د ستورې پېژندنې په ډګر کې دي. د ۱۶۰۰ ع په لومړیو کې د ستورې پېژندنې په برخه کې په خورا علاقمندۍ سره کار روان وو. د کوپرنیکس د هغه نظر د پلویانو چې ګواکې لمر د کایناتو مرکز دئ او د هغو خلکو تر منځ چې مځکه ئې د کایناتو مرکز باله، ډېر ګرم بحث روان وو.

ګلیلو په ۱۶۰۹ کې نظر ورکړ چې د کوپرنیکس نظر سم دئ خو د دې خبرې د اثبات له پاره کوم د منلو وړ ثبوت ورسره نه وو. په ۱۶۰۹ کې ګلیلو په هالنډ کې د دوربین په اختراع باندې خبر سو که څه هم په دې هکله ئې له

مخکي هم سرسري معلومات درلودل. نوموړی وتوانېد د خپل خدای ورکړي استعداد له مخي له ځانه يو غټ دوربين جوړ کړي. د دې نوې آلې په جوړولو ئې د مشاهدو مخه د آسمانونو خوا ته واوښته. د يوه کال په دننه کي ئې خپلي مهمي کشفوني وړاندي کړې.

نوموړي سپوږمۍ وکتله او وئې موندل چي دا يوه هواره کره نه ده بلکي پر مخ باندي ئې ډېر اور غورځوونکي ځايونه او غرونه دي. له دې څخه دې پايلي ته ورسېد چي اسماني اجسام هوار او بشپړ نه دي بلکي پر مخ ئې يو ډول لوړي ژوري موجودي دي چي له مځکي څخه ليدل کېدای سي. په همدې ډول ئې کهکشان وکوت او وئې ليدل چي دا خو شيده ئې لاره (Milky way) په هيڅ صورت نه ده بلکه له بې شمېره ستورو ډک يو تيت وجود دئ چي انسانان ئې د ليريوالي په خاطر ډېر پيکه او سرسري ويني. نوموړي سيارې هم وکتلې او معلومه ئې کړه چي د عطارد پر شاوخوا څلور سيارې گرځي. دا د دې خبري روښانه ثبوت وو چي له مځکي پرته هم يو آسماني جسم د کومي سيارې پر شاوخوا گرځي. گليلو لمر هم وکوت او پر هغه ئې د تپلو (داغونو) شتون معلوم کړ (اصلاً نورو کسانو هم تر دې وړاندي د دې تپلو خبره معلومه کړې وه مگر گليلو په ډېره اغېزناکه توگه خپلي کشفوني وړاندي کړې او دې خوا ته ئې د ساينسپوهانو توجه راواړوله). نوموړي دا هم معلومه کړه چي د وينس سياره د سپوږمۍ غوندي له بېلابيلو محورونو څخه تېرېږي. دې خبري د کوپرنيکس د نظريې د ثابتولو له پاره د يوه پياوړي ثبوت حيثيت واخيست چي مځکه او نوري سيارې د لمر پر شاوخوا راڅرخي.

د دوربين اختراع او نورو کشفونو گليلو مشهور کړ. خو د کوپرنيکس د نظريې د تقويه کولو له امله په کليسا کي د نوموړي پر ضد غوغا جوړه سوه. په ۱۶۱۱ کي ورته وويل سوه چي بايد د کوپرنيکس له مفروضې څخه لاس واخلي. گليلو څو کاله دا بنديز وگاله. په ۱۶۲۳ کي کله چي پاپ مړ سو، د نوموړي ځايناستی د گليلو له علاقمندانو څخه وو. بل کال نوي پاپ اربن اتم (په څه مبهم ډول) دا اشاره ورکړه چي دا بنديز نور پورته دئ.

گليلو ورپسې شپږ کاله د خپل مشهور کتاب (د کايناتو د دوو بنستيزو نظامونو په اړه خبري اتري) په بشپړولو تېر کړل. دا کتاب د کوپرنيکس د نظريې په ملاتړ د وړاندي سوو ثبوتونو په لړ کي شاهکار وخوت. په ۱۶۳۲ کي دا کتاب د کليسا په منظورۍ چاپ سو. خو د کتاب تر راوتلو وروسته ئې کليسا په وړاندي په غصه وه. ډېر ژر په روم کي پر گليلو د ۱۶۱۶ له دولتي بنديز څخه د سرغړاوي په تور د پلټونکي شورا الخوا محکمه دايره سوه.

يوه خبره خو ښکاره ده چي پر يوه داسي منلي ساينسپوه باندي د دې ډول

بندیزونو د لګولو په اړه د کلیسا یو ځانګړی شمېر کسان هم خوشاله نه ول. د هغه مهال د کلیسائي قانون له مخي هم د ګلیلو دا محاکمه قانوني نه وه. نوموړي ته نسبتاً عادي سزا واورول سوه چي زندان ته وا نه چول سو بلکي یوازي پر آرستړي کي د نوموړي په خپل هوسا کور کي نظربند کړل سو. قانوناً نوموړي اجازه نه درلوده چي له چا سره وویني خو په عملي ډول پر دې بندیز ډېر ټینګار و نه سو. دوهمه سزا دا وه چي نوموړی په عام ډول دا ابلاغ کړي چي نوموړی له خپل هغه نظر څخه چي مځکه پر لمر راڅرخي، اوښتی دئ. دې ۶۹ کلن ساینسپوه په محکمه کي دا اقرار هم وکړ (په دې اړه یو عام روایت دا موجود دئ چي تر اقرار وروسته ګلیلو د مځکي خوا ته وکتل او کرار ئې وویل چي دا خو اوس هم څرخي). په آرستړي کي نوموړي د میخانیک په اړه لیکنو ته دوام ورکړ څو په ۱۶۴۲ کي مړ سو.

د ساینس په وده کي د ګلیلو د ارزښتناکو زیاتونو په اړه ډېر وړاندي اعتراف سوی وو. د نوموړي مهموالی د هغه د بېلابیلو ساینسي نظریاتو له امله دئ لکه د جمود قانون، د دوربین اختراع، د آسمانونو کتنه او د کوپرنیکس د نظریو د ثابتولو له پاره د نوموړي شواهد. تر دې لا د ډېر اهمیت وړ په سیانسي کاري طریقه کي د ده رول دئ. نورو طبیعي فیلسوفانو هم چي له ارسطو څخه بصیرت اخیست، مهمي مشاهدي وکړې او په دې برخه کي ئې درجه بندي وکړې. خو ګلیلو د دې پایلي اندازه ګیري وکړه او ډېري مشاهدي ئې وکړې. د اندازه ګیری پر ډېروالي په دې کچه ټینګار د ساینسي څېړني نه بېلېدونکې برخه وګرځېده.

ګلیلو د بل هر ساینسپوه په پرتله د ساینسي څېړني د تجرباتي طرز په وده کي ډېر لاس لري. دا ګلیلو وو چي په لومړي ځل ئې د تجربو د مظهر پر اړتیا باندي ټینګار وکړ. نوموړي دا فکر رد کړ چي ګواکي د ساینسي پوښتنو جواب د مخکینیو پوهانو د نظر له مخي موندل کېدلای سي، که څه هم حواله ئې د کلیسا فیصلې وې یا د ارسطو نظریات. نوموړي د هغه دود له معتبر ګڼلو څخه هم مخ واړاوه چي له مخي ئې د پېچلو استخراجي لارو چارو څخه ګټه اخیستل کېده خو د تجربې پکښې کمی وو.

د منځني عصر پوهانو پر دې باندي ډېر بحث کړی دي چي څه باید وسي او پېښي ولي رامنځ ته کېږي؟ خو ګلیلو د دې سوال د جواب له پاره چي د شیانو اصلي حقیقت څه شی دئ، د تجربو پر مهموالي ټینګار وکړ. د نوموړي ساینسي کړنلاره له یو مخي د سرسرېتوب سره په ټکر کي وه. په دې برخه کي نوموړی تر خپلو ځینو ځایناستو لکه نیوټن ډېر ذهین وو.

دا خبره د پام وړ ده چي ګلیلو یو سخت مذهبي سړی وو. د خپلي محاکمي او د حرکت د نظریې سره سره

ئې بیا هم له کلیسا سره ټکر و نه واهه. یوازې ئې د کلیسا د هغه درېځ مخالفت کاوه چې له امله ئې ساینسي څېړنې اغېزمنې کېدلې. راوروسته نسلونو د کلیسا په وړاندې د نوموړې درېځ نیونه ستایلې ده. نوموړې د فکر پر آزادۍ د حاکمو ادارو څار هم ناجایزه ګڼه. د نوي ساینسي کاري طریقې په وضع کولو کې د نوموړي ونډه د ډېر اهمیت وړ ده.

## ۱۳- ارسطو

**(۳۸۴ تر ۳۲۲ ق م)**

ارسطو د پخوانیو زمانو تر ټولو لوی فیلسوف او ساینسپوه وو. نوموړي د منطق منظمه مطالعه پیل کړه. د فلسفې په نږدې هر ښاخ کې ئې د پام وړ کار وکړ او په ساینس کې ئې ډېرې زیاتونې وکړې.

اوسمهال د ارسطو ډېر نظریات ورک سوي دي. خو د ده تر ځانګړو نظرونو د ده په لیکنو کې موجود عقلي تګلاره مهمه ده. د ارسطو په لیکنو کې دا تګلاره روښانه ده چې د انساني ژوند او ټولنې هر اړخ د فکر او شننې مناسبه موضوع کېدلای سي. د هغې نظریې برعکس چې ګواکې د کایناتو نظام د یوه ړانده تصادف او یا جادو او یا الهامي هستیو د خوښې سره سم چلېږي، د ارسطو تګلاره پر عقلي بنسټونو ولاړه ده یعنې دا چې د انسان له پاره همدا بهتره ده چې هغه د طبیعي نړۍ د هر اړخ یوه منظمه څېړنه وکړي. له دې څخه د دې دود وده وکړه چې موږ باید د خپلو پایلو د لاسته راوړلو له پاره له تجرباتي مشاهدو او منطقي توجیهاتو دواړو څخه کار واخلو. د دې تګلارو مجموعې چې د روایتونو او وهمونو د تګلارې بر عکس دي، په لوېدیځ مدنیت کې نه پاکېدونکې نخښې پرېښوولې.

ارسطو د د مقدونیې په سټاګیره ښارګوټي کې په کال ۳۸۴ ق م وزېږېد. د ده پلار یو منلی طبیب وو. ارسطو په اوولس کلنۍ کې په اتنز کې د افلاطون په اکاډمۍ کې شامل سو چې هلته شل کاله پاته سو. د افلاطون له مرګ څخه لږه موده وروسته ئې اکاډمي پرېښووله. ارسطو د خپل پلار له طریقه په بیالوژۍ او عملي ساینس کې علاقمندي پیدا کړه. د افلاطون تر سرپرستۍ لاندې په فلسفیانه استغراق کې د نوموړي علاقمندي ډېره سوه.

په ۳۴۲ ق م ارسطو بیرته مقدونیې ته راغلی او د باچا د دیارلس کلن زوی شخصي ښوونکی سو چې وروسته د لوی سکندر په نامه وپېژندل سو. ارسطو څو کاله سکندر ته ښوونه او روزنه ورکړه. په ۳۳۵ ق م واک ته د سکندر له رسېدنې وروسته ارسطو بیرته اتنز ته راغلی او د لایسیوم (Lyceum) په نامه ئې خپله مدرسه پرانیستله. ورپسې لس کلونه ئې په اتنز کې تېر کړل. د ارسطو دا دور د سکندر له نظامي فتوحاتو سره جوړ نه وو. سکندر له خپل ښوونکي څخه په دې برخه کې کومه مشوره وانخیسته خو د نوموړي د علمي څېړنو له پاره ئې په پراخه کچه مالي کومک ورکاوه. غالباً دا په تاریخ کې لومړۍ بېلګه ده چې یو ساینسپوه ته د خپلو ساینسي څېړنو له پاره دومره ډېره دولتي مرسته ورکول کېده. په راوروسته څو پېړیو کې ئې هم بېلګه پیدا نه سوه.

خو بیا هم له سکندر سره د ده په اړیکو کې یو څه خړپړتیا هم وه. د سکندر د دیکتاتوري واک چلونې له امله ارسطو د هغه

سره مخالفت هم وکړ او کله چي سکندر د ارسطو وراره د غدارۍ په تور وواژه، نو دا اصلاً د ارسطو په وړاندي یو عکس العمل وو. په ۳۲۳ ق م کي د سکندر تر مرګ وروسته د مقدونیې دښمنو خلکو په اتنز کي واک ترلاسه کړ. پر ارسطو باندي د الحاد تور ولګېد. نوموړي ۷۶ کاله دمخه له سقراط سره د تر سره سوي عمل ته په کتلو له ښاره وتښتېد. ارسطو ویل چي دی به ایتنز ته د فلسفې په وړاندي د دوهمي ګناه فرصت کله هم ور نه کړي. څو میاشتي وروسته د ۶۲ کلونو په عمر په جلا وطنۍ کي ومړ.

د ارسطو د لیکنو شمېر هم هیښوونکی دئ. په پخوانیو قاموسونو کي د نوموړو د کتابونو شمېر ۷۰ ښوول کېږي چي یوازي ۴۷ ئې پاته دي. مګر یوازي د ده د کتابونو شمېر نه، بلکي د ده علمي تبحر هم اصلاً هیښوونکی دئ. د ده په ساینسي لیکنو کي د هغه وخت له ساینسي علومو څخه ترتیب یو قاموس هم شامل دئ. ارسطو په بیالوژي، زوولوژي (ژو پېژندنه)، تکثر، جغرافیه، د مځکي د طبقو علم، طبیعي علومو، علم الابدان او د اعضاوو د افعالو تر څنګ د پخوانیو یونانیانو د علم نژدې په هر ښاخ کي بې پایانه کار وکړ. د ده د ساینسي لیکنو یوه برخه د مځکي تر لاسه سوو معلوماتو د تدوین او ترتیب باندي جوړه ده. یو څه برخه ئې د ده پر معلوماتو بنا ده چي د ده د اجرت وړونکو مامورینو د ده له پاره راغونډي کړي وه. پاته برخه ئې د ده د خپلو بې شمېره مشاهدو پایله ده.

د علم په هر ډګر کي د یوه پاخه ماهر مقام ته ځان رسول د ډېري خیرکۍ خبره ده. د ارسطو رتبه تر دې ډېره زیاته لوړه ده. هغه یو ربښتینی فیلسوف هم وو. ده د فلسفې په هره برخه کي د پام وړ زیاتوني وکړې. پر هغو موضوعاتو چي ده لیکنه کړې، په دې ډول دي: اخلاق، مابعد الطبیعات، ارواپوهنه، اقتصاد، خدای پېژندنه، سیاسي علوم، خطابت او ښکلا پېژندنه، ښوونه او روزنه، شعاري، وحشي دودونه او رواجونو او د ایتنز پر اساسي قانون ئې هم لیکنه کړې ده. د ده یو د پام وړ کار د څو ښاري دولتونو د اساسي قوانینو پر یو ځای راټولول دي چي د ده د پرتلیز جاج موضوع وه.

په دې کي غالباً د ده تر ټولو مهم کار د ده د منطق نظریه وه. ارسطو په عمومي ډول د فلسفې د دې مهم ښار بنسټګر بلل کېږي. دا د ده د ذهن د منطقي پیاوړتیا پایله وه چي نوموړي په دومره شعبو کي په یو ډول بصیرت او لوړوالی درلود. په ده کي د خیالونو د منظمولو ملکه موجوده وه. کوم عروض چي ده وړاندي کړي او کومه درجه بندي چي ده کړې، هغوی د علم په بیلابېلو څانګوي کي فکري بنسټونه ودرول. هغه نه افراطي وو او نه هم سرسري. هغه د عملي عام – پوهېدني استازی وو. له ده څخه تېروتني هم وسوې مګر د هیښوني وړ خبره دا ده چي د فکر په دې پراخه سیند کي له ارسطو څخه غیرمعقول حرکتونه څومره کم صادر سول.

پر راوروسته ټول لوېدیز فکر د ارسطو اغېزي بې پایه دي. په پخوانیو او منځنیو پېړیو کي د ده لیکني په لاتیني، شامي، عربي، ایټالوي، فرانسوي، عبراني، جرمني او انګرېزي ژبو وژباړل سوې. راوروسته یوناني لیکوالو د ده لیکني ولوستې او وئې ستایلې. بازنتیني فیلسوفان هم له ده څخه اغېزمن وه. پر اسلامي فلسفه د ده ډېري ژوري اغېزي پرېوتې. تر پېړیو پوري د ده

فکر پر اروپايي فکر واک وچلاوه. په عربي فیلسوفانو کي ابن رشد د اسلامي خدای پېژندني او د ارسطو د عقلیت سالارۍ د هماهنګ کولو هڅه کړې وه. د منځنیو پېړیو په یهودي مفکرینو کي تر ټولو اغېز لرونکی مفکر میموناېډس د یهودیت له پاره همداسي یو ترکیب پیدا کړی وو. خو دا ډول یو لوی کار مسیحي عالم سېنټ تامس ایکیوینس د (Summa Theologica) له لاري وکړ. که د دې اغېزمنو فیلسوفانو فهرست ترتیب کړای سي، نو ډېر به اوږد سي.

د ارسطو اغېزناکتوب دومره ژور وو چي وروسته د منځنیو پېړیو خلکو ده ته د یو خارق العاده مخلوق په ډول احترام کاوه. د ده له لیکنو څخه په یو ډول عقلي پرده جوړه سوه چي د هغه تر شا د نوري څېړني منظر ورک سو. هغه د علم ډېره جوړ نه سو خو ارسطو مشاهده او فکر خوښول. ړوند تقلید، چي راوروسته نسلونو د ده د نظریو په حق کي وکړ، د ده د طبیعت خلاف کار وو.

د ارسطو ځیني نظریات د ننني معیارونو له مخي ډېر لرغون پرستانه معلومېږي. لکه ده چي د غلامۍ په پلوۍ دا دلیل وړکړ چي دا د فطرتي قوانینو سره سم سر خوري. ده نظر لاره چي ښځه په فطري ډول ټیټ مخلوق دئ (د ده دا دواړه نظرونه د هغه وخت د حاکم فکر استازیتوب کوي). خو د ارسطو ځیني نظریې په هیښوونکي ډول نوي معلومېږي لکه دا چي (غریبي د انقلاب او جرم مور ده) او دا چي (کومو خلکو چي د انسانانو د منظم کولو فکر کړی دئ، هغه پر دې یوه خوله دي چي د پاچاهیو تقدیر د ځوانانو پر سواد باندي تړلی دئ). (بې له شکه د ارسطو په زمانه کي د عوامو د سواد تصور موجود نه وو).

په تېرو څو پېړیو کي د ارسطو په اغېزو او حیثیت کي کموالی رامنځ ته سوی دئ. بیا هم زه دا محسوسوم چي د ده اغېزې دومره ژوري وې او دومره ډېر وخت پاته وې چي زه خواشینی یم چي ولې مي په دې فهرست کي د ده درجه تر دې لوړه نه کړای سوای. په اوسني ترتیب کي د ده درجه تر دې مخکي دوولسو کسانو د فوق العاده اهمیت په نظر کي نیولو سره وټاکل سوه.

## ۱۴- اقلیدس

**(۳۰۰ ق م)**

د تاریخ په اوږدو کي ډېر لږ کسان دومره مشهور سوي دي لکه دا لوی یوناني مهندس. که څه هم ناپلیون، سکندر او مارټن لوتر او داسي نور په خپل ژوند کي تر ده ډېر مشهور سول مګر د وخت په تېرېدلو د نورو په پرتله د ده شهرت ډېر زیات سو. د دې شهرت سره سره موږ د اقلیدس د ژوند په اړه لږ معلومات لرو. موږ پوهېږو چه هغه د مصر په سکندریه کي په ۳۰۰ ق م یو فعاله استاد وو. خو د ده د زېږېدلو او مرګ تاریخونه معلوم نه دي. موږ په دې هم خبر نه یو چه هغه په کومه لویه وچه کي وزېږېد او ان دا چي په کوم ښار کي؟ هغه ډېر کتابونه ولیکل خو یوازي یو ئې پاته دئ. په تاریخ کي ده ته دا لوړ مقام د ده د عناصر (elements) کتاب په خاطر تر لاسه سو. د (عناصر) اهمیت په هغه کي د موجودو نظریو له امله نه دئ. په دې کتاب کي موجودي نظریې تر اقلیدس مخکي هم وړاندي سوي وې. د اقلیدس تر ټولو لوی کار د موادو ترتیب بندي او د کتاب د جوړښت انسجام دئ.

لومړی خو د مقولو او مفروضو د يوې منظمې مجموعې د ټاکلو پړاو وو. دا يو ستونزمن پړاو وو ځکه په دې کې د پرېکړې کولو د يو فوق العاده ځواک او ژورې پوهې اړتيا وه. نوموړي هله په احتياط سره دا مفروضات ترتيب کړل څو هره يوه له خپل راتلونکې هغه سره په منطقي ډول تړلې معلومه سي، چيرې چې اړينه محسوسه سوه، هلته ئې له خپله ځانه اجزا راپيدا او شواهد ئې وړاندې کړل. دا خبره د پام وړ ده چې (عناصر) چې په بنسټيز ډول ساده او يوازې د هندسې د علم يوه پر مختللې بڼه ده، الجبر او د اعدادو نظريه هم په تفصيلي ډول په ځان کې رانغاړي.

د (عناصر) کتاب له تيرو دوه زره کلونو څخه ډېر وخت کېږي چې د نصابي کتاب په توګه تدريس کېږي. دا بې له مبالغې يو تر ټولو بريالی کتاب دئ. اقليدس دا کتاب په يو داسي بڼه ډول وليکی چي تر خپرېدلو وروسته دا د هندسې د علم تر ټولو پخوانيو نصابونو بهتره سو او هغوی ډېر ژر هېر کړل سول. دا کتاب په يوناني ژبه ليکل سوی وو چي تر اوسه په ډيرو ژبو ترجمه سوی دئ. په لومړي ځل په ۱۴۸۲ ع کي دا کتاب په منظم ډول چاپ سو يعني کله چي د ګټن برګ لخوا د چاپخوني تر اختراع دېرش کاله تېر سوي وو. له هغه مهاله تر اوسه ئې په زرګونو بېلابېل چاپونه راوتلي دي.

د منطقي دليل له مخي ده انساني ذهن وروزی. دا کار د منطق په اړه د ارسطو تر مقالاتو ډېر اغېزمن ثابت سو. دا د يو بشپړ را ايستل سوي چوکاټ يوه فوق العاده بېلګه ده چي د ليکل کېدني له هغه پيله ئې پر مفکرينو خپل اغېز شيندی.

دا پر ځای خبره ده چي د نوي ساينس په وده کي د اقليدس کتاب يو مهم رول ادا کړ. ساينس د څو سمو مشاهدو او اغېزناکو مفروضو آخوا هم يو شی دئ. له يوې خوا خو دا د نوي ساينس د لويی ودي، تجربيت او آزمايښت له ګډون څخه رامنځته سو، له بلې خوا يوه محتاطه شننه او استخراجي دليل دئ.

موږ په دې اړه ډېر نه پوهيږو چي ساينس د اروپا پر ځای په چين او يا جاپان کې ولي وده و نه کړه؟ خو دا ويل په هر حال شوني دي چي دا يوازې يو تصادف نه وو. بې له شکه د نيوټن، ګاليله، کوپرنيکس او کيلر غوندي خلک د ډېر اهميت څښتنان دي. خو بيا هم دا پوښتنه راولاړېږي چي ولي پورته ذکر سوي خلک د ختيځ پر ځای په لوېديځ کي راپيدا سول؟ غالباً ډېر روښانه تاريخي عنصر چي په لوېديزه اروپا کي ئې د ساينس زېږي وشيندل، يوناني عقليت پسندي وه. رياضياتي علم هم ورسره په څنګ وو چي يونانياتو په ميراث کي پرېښود.

د اروپائي خلکو له پاره دا تصور چي يو څو داسي طبعي قوانين سته چي هر شی ورڅخه استخراج کېدلای سي، له يوه مخه فطري خبره وه ځکه له دوی سره د اقليدس بېلګه وه (په ټوليز ډول اروپايي خلکو د اقليدس د هندسې علم ته يوازي د يو ځانګړي نظام په سترګه نه کتل، دوی فکر لاره چي د اقليدس اصول او قضيې.د يوې رښتيني نړۍ حقايق دي).

پورته ياد سوي ټول کسان له اقليدس څخه ګټمن سوي دي، په دوی کي هر يوه (عناصر) په دقت سره مطالعه کړی وو او له همدې څخه د دوی د رياضياتي علم بنسټ کښېښوول سو. پر آيزک نيوټن باندي د

اقلیدس اغېزې په ځانګړي ډول ډېري روښانه دي. نیوټن خپل کتاب (Principia) په هندساتي بڼه ولیکی چي د (عناصر) له بیلګي سره سر خوري. له همغه وخته نورو مهمو لوېدیزو ساینسپوهانو د دې په ثابتولو د اقلیدس تقلید کړی دئ چي څنګه د دوی پایلي د لومړنیو مفروضو له یوه کوچني شمېر څخه په منطقي ډول باندي استنباط کېدلای سي. برټرینډ رسل او الفرډ نارث وایت هینډ غوندي ریاضي پوهانو او سپنوزا غوندي فیلسوفانو همداسي وکړل.

له چین سره پرتلنه ډېره هیښوونکې ده، په پېړیو پېړیو د دوی ټیکنالوژي تر اروپایانو په څو واري بهتره وه خو په چینایانو کي د اقلیدس غوندي د هندسې د علم ماهر پیدا نه سو. په پایله کي چینایانو کله هم د ریاضي هغه نظریاتي اساس پیدا نه کړای سوای چي لوېدیځ تر لاسه کړی وو (چینایان د هندسې په عملي علم کي ډېر مخته ول لیکن د دوی دې علم کله هم د استخراجي تګلاري له طریقه نوي جوړښت تر لاسه نه کړ). تر ۱۶۰۰ ع پوري اقلیدس په چینائي ژباړل سوی هم نه وو. بیا د چینایانو له پاره د هندسې د علم د استخراجي نظام له تصور سره په اشنا کېدلو کي هم پېړۍ ولګېدې. تر څو چي دا کار نه وو سوی، چینایانو په ساینس کي کوم په زړه پوري پرمختګ و نه کړ.

همداسې نظر د جاپان په باره کي هم ورکول کېدای سي چيري چي تر اتلسمي پېړۍ پوري د اقلیدس د کارونو په اړه هیڅ څوک نه پوهېدل او بیا د دې له پاره چي د منلو وړ وګرځي، هم کلونه تېر سول. که څه هم نن په جاپان کي ډېر شمېر ساینسپوهان موجود دي، لیکن له اقلیدس سره تر اشنا کېدلو مخکي په دوی کي داسي څوک نه وو. اوس په ذهن کي دا پوښتنه را پیدا کېږي چي که د اروپائي قومونو له پاره اقلیدس لاره نه وای هواره کړې، نو ایا شونې وه چي دوی به په ساینس کي دومره پرمختګ کړی وای؟

نن ریاضي پوهانو دا درک کړې ده چي یوازیني د اختراع کېدنی وړ هندساتي نظام د اقلیدس د هندسې پر ځان بسیا علم نه دئ بلکي په تیرو ۱۵۰ کلونو کي د اقلیدسي نظام تر څنګ ډېر نور هندساتي نظامونه اختراع سوي دي. له کله چي د آین سټان د اضافیت عمومي نظریه منل سوې ده، ساینسپوهانو په قوت سره دا احساس کړې ده چي اقلیدسي هندسي علم تل په حقیقي دنیا کي د سمو پایله سبب نه سي کېدلای.

د تور سوري (Black Hole) او نیوټران ستورو په شاوخوا کي چیري چي د ثقل د کشش ځواک ډېر شدید دئ، د اقلیدس د هندسې علم د موجود وضعیت یو سمه نقشه نه وړاندي کوي. بیا هم دا بیلګي په شمېر دي، په ډېرو مثالونو کي د اقلیدس هندسي نظام د حقیقت د ډېري سمي خاکې په وړاندي کولو کي کامیابه سوی دئ.

په انساني علم کي اوسنی پرمختګ په هیڅ وجه د اقلیدس عقلي لوړوالی نه کموي، نه خو د ریاضي په پرمختګ کي د ده په تاریخي اهمیت کي څه لږوي، او نه هم د هغه منطقي چوکاټ د پاینښت په مخکي کي خنډېږي چي د نوي ساینس د پرمختګ له پاره اړین دئ.

نور بیا...

# اغېزناکه مذاکره

**د مذاکرې خاصي نقطې وپېژنئ**

**دوه اړخیزه ګټونکي حالتونه وپېژنئ**

**اجنډا جوړول او د مقابل لور اجنډاوو ته جوابونه**


لیکوال: کین لاسن، ایم. اې، اي ډي. ایم

ژباړه: **سعید لودین/کاناډا**


**(دوهمه برخه)**



## د مذاکرې له پاره تیاری نیول

**(خپل کورنی کار کول)**

هغه مذاکره کوونکي چې غواړي هغه څه تر لاسه کړي چې هیله ئې لري، هیڅ کله به هم د مذاکرې و غونډې ته تر هغو ولاړ نه سي تر څو د خپل حریف په باره کي ئې هومره معلومات راټول کړي نه وي څونه چې ئې وس کېږي.

د مذاکرې و غونډې ته یوازي د لویو امیدونو سره ورتلل تل یوه نااميده او ناکامه نتیجه په لاس راوړي.

لاندي فارم به ستاسو سره و مذاکرې ته د تیارېدو له پاره مرسته وکړي. د سوالونو جوابونه به تاسو ته ډېر ګټور څه په لاس درکړي لکه دا چې، ستاسو حریف کومي منابع لري؟ ایا هغه ستا سره و معاملې ته اړتیا لري؟ ایا ستا حریف داسي مالي او د وخت محدودیتونه لري چې هغه ستا پر کمزوره کېدلو او یا پیاوړه کېدلو اغېزه وکړي؟

۱. د خپل حریف د ګټو لیست جوړ کړئ.

۲. ستا د حریف د مذاکرې طرز څنګه دئ؟

۳. ستاسي حریف به کوم کوم تاکتیکونه کار کړي؟

۴. د حریف د چنو توان مو څونده دئ؟

۵. حریف مو د مذاکرې تر کومو منابعو تېرېدلای سي؟

٦. حریف ته مو ګډ جوړجاړي ته رسېدل څونده مهم دي؟
٧. د حریف دریځ مو څنګه دئ؟
٨. د حریف اقتصادي حالت مو څنګه دئ؟
٩. په دې پېښه کې مو د حریف مقام څنګه دئ؟

## (ګټې د مقامونو په مقابل کې)

مذاکرې اکثره په دې ناکامه کېږي چې مذاکره کوونکي یو حالت اختیار کړي او پر هغه ځای پسي ټینګ سي. هر څونده چي یوه و بله خوا پر یوه و بل و جوړجاړي ته د رسېدلو فشار راوړي هغونده پر خپلو ځایونو ټینګېږي او سختېږي. په لنډ ډول هیڅ جوړجاړی تر هغو ممکن نه دئ تر څو د خپلو مقامونو دفاعوي شروع وي. د دغه تکراري حالت د ختمولو له پاره دا ضروري ده چي څوک و تېرو وختونو ته وګوري او ځان ته معلومه کړي چي دا حالت حریف له اوله سره نیولی پر څه دئ؟ دغسي حالت اکثره ستاسو د حریف له ګټو سره تړاو لري. ګټې د اړتیاوو او غوښتنو څخه جوړي وي. ماهر مذاکره کوونکي تل کوښښ کوي چي ځانونو ته دا معلومه کړي چي د مقابل لور ګټې په څه شي کې دي. دا یعني و ځانونو ته هغه قوت معلومول دي چي مقابل لور ورته اړ دئ او دی (حریف) ئې و دې حالت ته راوستلی دئ. دغسي پوهه تر لاسه کول د یوه جوړجاړي و رسېدلو ته لومړی ګام دئ. په هره مذاکره کي په یو و بل پوري تړلي ګټې موجودي وي که څه هم په ظاهره د دواړو خواوو حالتونه ډېر توپیر سره ولري.

دې لاندي مثال ته ځیر سئ:

دفاعي حالت: یو څوک غواړي چي د خپل جایداد یوه برخه خرڅه کړي. دی د دې برخي له پاره ۳۰۰۰۰۰ ډالره ټاکي. رانیوونکی سړی چي غواړي دا برخه وروسته په کرایه ورکړي د دې برخي له پاره ۲۵۰۰۰۰ ډالرو ورکولو ته تیار دئ. خرڅوونکی پر دې ټینګ ولاړ دئ چي قیمت نه سي راکښته کولای او رانیوونکی پر خپل وړاندیز ټینګ ولاړ دئ. په ظاهره داسي ښکاري چي و جوړجاړي ته د رسېدلو هیڅ امکان نسته او د دواړو خواوو حالتونه ډېر سره لیري دي. برعکس هر څونده چي یو و بل د یوه و بل و حالتونو ته د تغیر هڅه وکړي هغونده پر خپلو ځایونو (حالتونو) ټینګېږي او هغه امکانات د لاسه ورکوي چي د یوه و بل و ګټو ته ئې متوجه کوي.

د دواړو خواوو و حالتونو ته له نیژدو څخه تر کتلو وروسته دا څرګندېږي چي د جوړجاړي له پاره یو څه ځای سته.

د خرڅوونکي د مشکل په پیدا کولو سره، رانیوونکي ته دا څرګندېږي چي خرڅونکی په دې پر ۳۰۰۰۰۰ ډالره ټینګ ولاړ دئ چي هغه تر پورونو لاندي دئ او غواړي دا پور په یوه کال کي ادا کړي. د ده ګټه په اصل کي تر ډېره حده په پیسو کي نه ده بلکي په دې کي ده چي د مسلسلو اقتصادي اندېښنو څخه راووزي. خرڅوونکي ته د رانیوونکي پر خپل وړاندي سوي نرخ د ټینګېدلو علت معلومېږي هغه دا چي رانیوونکی په دې پر ۲۵۰۰۰۰ ډالرو نه دئ چي ګواکي اضافه پیسې د هغه (رانیوونکي) تر وس تېري دي بلکي په دې ټینګ دئ چي د ده د حساب له رویه

همداځه ځای وروسته د کرایه ورکولو په صورت کي به و ده ته نوره فایده و نه کړي.

**(د امکاناتو را څرګندېدل)**

اوس دواړي خواوي داسي یو څه لري چي بحث پر وکړي. که رانیوونکی و خرڅوونکي ته دا وعده ورکړي چي دی ډېر ژر دا ځای رانیسي او یو لوی رقم نغده به هم ورکوي او په دې سره به خرڅوونکی په دې وتوانېږي چي خپل پورونه ژر تر ژره په ادا کړي د دې پر ځای چي په کراره کراره ئې ادا کوي، دا کار به خرڅوونکی و دې ته اماده کړي چي نرخ یو څه راکښته کړي. خرڅوونکی و رانیوونکي ته دا ور ښودلای سي چي هغه ترقیاتي کار چي ده په خپل دې ځای کي کړی دئ، دا به د دې ځای په لوړه کرایه ورکولو کي مؤثر تمام سي او دی (خرڅوونکی) دا ثابتولای سي چي دا ځای په لړ نور مصرف ارزي. تاسي وینی چي اوس نو و جوړجاړي ته د رسېدلو یوه امکاني لاره سته چیري چي ترمخه د هیڅ جوړجاړي امکان لا نه وو. دا هم تاسي باید له ذهنه و نه باسي چي خرڅوونکی او رانیوونکی دي جوړ جاړي ته سره و نه رسېږي. په هر حال و ځان ته د یوه و بل د اصلي ګټو معلومول په خپله په ځان کي دا څرګندوي چي و جوړجاړي ته د رسېدلو ډېر امکان سته.

**(د ګټو په اړه معلومات کول)**

ښه نو تاسي څنګه د مقابل لور ګټي و ځان ته معلوموئ؟ په یوه لار او هغه د خاصو پوښتنو په کولو سره.

مثال: ته د موټرانو د پرزو کمپنی لرې او اکثرو ګاراجونو ته ئې هر کله پر ټاکلي وخت وررسوې. ستا د زاړه قرارداد وخت لږ پاته دئ او باید نوی سي. مقابل لور ستا د توقع پر خلاف ستا څخه غوښتنه کوي چي پرزې باید د پخوا تر وخت وختي وررسېږي او دا دغسي غوښتنه وي چي ته یې نه سې پوره کولای خو مقابل لور پر خپلي غوښتني ټینګ ولاړ دئ. ښکاره خبره ده چي ته نه غواړې چي ګیراک له لاسه ورکړې او تر دې حالت وروسته اکثره داسي طمع کېږي چي یو و بل پر خپل خپل ځای ټینګ ودرېږي او هر یو د خپل موقف په کلکه دفاع وکړي. د داسي یوه حالت د مخنیوي له پاره لاندي موضوع وڅېړئ.

**۱. ستا حریف ولي ټینګار کوي؟**

دا ښایي په دې چي د ده ګودام به پر پخواني وخت ډېلویري نه سي اخیستلای، نو په دې به غواړي چي وخت ئې رامخته کړي. اوس نو که ته غواړې چي د ګیراک و دې غوښتني ته دي جواب ووایې نو هغه به د پرزو له پاره په ګودام کي ځایوي نه د ډیلوري تاریخونه.

**۲. ستا مشورې او امتیازونه به پر ده باندي څه اغېزې ولري؟**

دا به ستا سره ډېر ژر کومک وکړي چي په دې دي پوه کړي چي هغه څه شي دئ چي دی هڅوي خو د دې معنا دا هم ده چي ته باید د خپلو مشورو او امتیازونو مسئولیت او پایلي ئې پر خپله غاړه واخلې.

ماهر مذاکره کوونکی به داسي یو څه وکړي:

- د خپل حریف پر ګټو زیات تاثیر ته توجه کول
- خپل لور ته په لږ مصرف تمامېدل

پوښتنه څني وکه چي ته په یوه بل مناسب ډول چي د ګودام ځای او شکل هم

په نظر کې نیول سوی وي، پرزې پر خپل وخت وروړسوې. دا به ستا د حریف پر ګټو ډېر لوی اثر اچول وي خو تا ته به په ډېر لږ قیمت.

### ۳. ستا حریف څومره ګټې لري؟

په ظاهره خو یوه ګټه تر لاسه کول غواړي او هغه دا چې پرزې ئې پر وخت وروړسېږي. دا په دې چې په ګودام کې یې پر یوه وخت د ګڼې ګونې مخه نیول سوې وي. خو ته باید د دې لومړنۍ او ظاهري ګټې تر شا وګورې. دا یعني ته باید صرف د خپل حریف د غوښتنو و شمېر ته متوجه نه یې بلکې د دغو غوښتنو تر شا و هغو خلکو ته چې په مذاکره کې داخل نه دي هم پام وي ځکه هغوی هم ستا د حریف په فیصلو اغېزمن کېږي.

– ستاسي حریف باید د هغو خلکو غوښتني هم په پام کې ونیسي چې په همدې کمپنۍ کې کار کوي او د نورو کمپنیانو څخه شیان راغواړي او هغوی ئې هم و دوی ته پر همدې وخت رارسوي.

– دی باید هغه تاریخونه هم په پام کې ونیسي چې د نورو کمپنیانو سره ئې په اړه معاهدې کړي دي.

– ستاسي حریف باید د منېجر او کارګرو غوښتني او ګټې هم په نظر کې نیولي وي ځکه که ګودام پر یوه وخت له هري خوا څخه مصروفه سي نو په دغسي حالت کې تل جنګونه او شرونه پېښېږي.

۴. ستاسي د حریف د ګټو ماهیت او فطرت څه شي دئ؟

دا ډېر اسانه کار دئ چې څوک دي دا اټکل وکړي چې د غټو کمپنیانو ګټې تل د عایداتو په ډېرېدلو کې دي او یا د یوه سیاسي مشر غوښتنه تل قدرت دئ. خو د پوښتنو په

کولو سره به تاسي ځانونه د غلطو اټکلونو څخه ژغورلي وي. لاندي مثالونه د ډېرو قوي ګټو مثالونه دي:

تندرستي (اقتصادي، احساساتي او جسماً)

### پېژندګلوي
### مساوي او یا باانصافه چلند

اصولو ته درناوی درلودل او یا اخلاقي قوانین ټول قوي غوښتني او ګټې دي.

پیسې:

د پرزو په مثال کې ښایي تاسو دا ګومان کړی وي چې مسئله د پیسو وه. کمپنۍ غوښتل چې ژر تر ژره ډیلیوري تر لاسه کړي او پیداوار یې ډېر سي او ورپسې لاس ته راوړني یې هم ډېري سي. خو هلته اصلي مسئله د پیسو نه وه بلکې ټرانسپورټي او د ځای مشکل وو.

نور بیا ...

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- د هر هغه څه هرکلی وکړه چې د ځان څخه ئې نه سې چپولای. د ژوند خوند د هغه کار په کولو کې دئ چې خلک وایي ته یې نه سې کولای.
- د خپل ځان د خوشحاله کولو ښه لاره دا ده چې بل څوک خوشحاله کړې.
- انسان باید شرایط تر خپل کنټرول لاندي راولي نه دا چې خپل کنټرول شرایطو ته په لاس ورکړي.

***

# د کابل پیغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد

منظره:

افغانستان له هره اړخه آرام وو. د چارواکو او ملت اړیکي خورا ښه وې. ځوان او ګران شهزاده امیر امان الله خان د حکومت په رأس کي وو. هیواد د اقتصادي پرمختګ پر خوا روان وو. د صنعت او حرفت فابریکې یو په بل پسې خلاصېدلې. د حکومت له خوا فابریکې او د هغوی ځښتنان هڅول کېدل. په ټول هیواد کي خوښي او خوشالي وه. افغانستان تر دې مهاله هیڅکله داسي خوشحالي او بېغمي نه وه لیدلې. افغانان خوشحاله ول او په ډېر اطمینان او بېغمي سره ئې ژوند کاوه.

بس نابېره د کوهدامن څخه د غلو د راوتلو خبرونه راورسېدل. په سر کي دغو خبرونو ته چا اهمیت نه ورکاوه. نه حکومت او نه هم حکومتي کسانو دا خبرونه په باک نه راوړل. خو کله چي بېرووونکي او لړزوونکي خبرونه ورځ په ورځ را ډېر سول نو افغان حکومت هم پام ور واړاوه. د ګروېږنو څخه معلومه سوه چي د دغو غلو مشر یو ډېر بې وفا او ظالم کس دئ چي بچۀ سقاو نومېږي.

حکومت لا خپل تحقیقات کول چي د دغو غلو افراد نور هم ډېر سول. هغوی د کوهدامن څخه مخته راغلل وژني، غلاوي او چور تالان ئې پیل کړ. د هغې سیمی وګړي ډېر ناآرامه سول او وبېرېدل. حکومت چي دا حال ولید نو د غلو د ځپلو له پاره ئې یو کوچنی پوځ ور ولېږی.

دغه پوځي ډلي غله تعقیب کړل او هغوی هم وبېرېدل ځو چي بیرته د کوهدامن غرونو ته وتښتېدل. که څه هم په دې شاتګ سره سیمي ته امنیت راستون سو، خو غله په بشپړه توګه له منځه یو نه وړل سول. هغوی چي به کله موقع ومیندله نو لارویان به ئې شکول او بیرته به په غرونو کي پټېدل.

یوه شپه چي لمر ولوېد او د کوهدامن پر شنو مامتو باندي د تیارې څپه خپره سوه، نو د لیری څخه غرونه تور او بیرووونکي

ښکارېدل. د لاري پر دواړو خواوو باندي ونو دومره تياره جوړه کړې وه چي ستر ګو آن لاسونه لا هم نه سواى ليدلاى. نسبتاً تونـد باد چلېدى. په آسمان کي د اوريځو غټې ټوټې سر ګردانه او لالهانده ګرځېدې.

دا مهال اړونده سيمه ډېره بېرووونکې وه. هوا هم سړه وه. اوريځي او باد هوا نوره هم سړه کوله. د باد څپو بدن لړ لړ رېږداوه. هر ژوندى شى په سيوري او تياره کي غلى وو. په دغسي مهيب حالت او سکون کي يوه کوچنۍ قافله د کوهدامن څخه تيرېده. هغوى جبل سراج ته تلل. په دې کاروان کي څو غاتري (کچري) هم وې چي سامانونه پر بار ول. يو څو آسونه ول چي ټېلې ئې ورپوري تړلي وې. په دغو ګاډيو کي ښځې سپرې وې. څنګه چي جبل سراج له دې ځايه ليري وو، نو ځکه قافله په ګړنديتوب سره مخته تلله.

اوريځي وار په وار تخته کېدې او د باران کوچني څاڅکي رالوېدل چي له امله ئې ساړه هم ډېرېدل. څاڅکي وار په وار ډېرېدل څو چي سم باران پيل سو. د دغو سپرليو څخه يو تن وويل چي: عبدالرحمانه! باران شروع سو او يخني زياتېدونکې ده. د پوستين څخه سړه هوا د غشي غوندي راباندي لګېږي. تياره دومره زياته ده چي لاره هيڅ نه ښکاري او ما درته ويلي وه چي د غره د لمني کوم کلي ته به ورسو، خو تا زما خبره و نه منله.

عبدالرحمن د هغه خبره غوځه کړه او داسي ئې ورته وويل: په دغو کليو کي د بچۀ سقاو د غلو بېره ده. د هغه ډله ټپله اوس خورا ډېره سوې ده. جبل سراج ته په رسېدو سره به موږ ډاډه او آرام سو. نو ځکه مي نه غوښته چي دلته په کوم کلي کي پاته سو.

هغه سړي ورته وويل چي موږ خو حکومتي کسان يو، موږ په افغان حکومت پوري اړه لرو . هغوى موږ ته د زيان اړولو جرئت نه سي کولاى. عبدالرحمن ورته وويل چي: شيرخان وروره! بچۀ سقاو تر بل هر چا د حکومت او دولتي مامورينو لوى دښمن دئ. هغه په دې غرونو کي ورو ورو خپل قدرت زياتوي. داسي ويل کېږي چي هغه دلته د غلو او لوټمارو يو حکومت جوړ کړى دئ آن وزارتونه ئې هم تأسيس کړي دي.

کوم شخص چي لومړى خبري پيل کړي وې شېرخان نومېدى. شېرخان او عبدالرحمن دواړه د افغان پوځ افسران ول. شېرخان د يوې ټولۍ مشر او عبدالرحمن د همدې ټولۍ مرستيال وو. هغوى دواړو رخصت اخيستى او خپل کور ته تللي ول، خو اوس بيرته له کور څخه وظيفې ته روان ول.

شېرخان وويل چي: "زموږ له پاره خو څه خبره نه ده، که هر څومره ساړه، باران يا تياره هم وي سفر مو کړى دئ، خو زموږ ښځې..."

عبدالرحمن د هغه خبره قطع کړه او داسي ئې ورته وويل: زموږ ښځي هم زموږ غوندى سخت سري او زړه وري دي.

شېرخان: زړې ښځي خو بې له شکه همداسي دي مګر ستا لور سِتاره او زما لور حُسن جهانه ډنګري دي، لږ ساړه هم نه سي زغملاى.

عبدالرحمن: هو! بالکل همداسي ده، ما هغوى ته د نازکو پوړنو له پاره ويلي وه. خو بيا به هم وګورم که ئې يخ کېدى نو خپل کمپل به هم ورکړم.

عبدالرحمن په همدې خيره سره هلته ګاډی ته روان سو او داسي ئې ور ږغ کړه: ستارې لوري! ساړه خو دې نه کېږي؟

يو ډېر خوږ او نازک آواز راغی: "يا پلار جانه، زه او حسن جهانه خور ښېخي تودې او آرامي يو".

دا د ستارې ږغ وو. ستاره د عبدالرحمن لور وه. عبدالرحمن داسي ورغبرګه کړه: "لوري! د يخ څخه بايد ځان ښه وساتل سي، په لږ بې احتياطي سره سينه بغل پيښېدای سي. که دې لږ يخ هم کېږي نو دا کمپل واخله دواړي ئې پر خپلو پښو باندي وغوړوئ".

ستارې د ګاډی کړکۍ خلاصه کړه بهر ته ئې ځان لږ کوږ کړ. که څه هم د باران ميده ميده څاڅکي رالوېدل او تياره هم خپره وه خو د ستارې روښانه صورت په تياره کي د فرشتې غوندي له ورايه معلومېدی. هغې داسي وويل: پلار جانه ! موږ کمپل ته ضرورت نه لرو. جبل سراج لا څومره ليري دئ؟

عبدالرحمن: بس څه نا څه دوه درې ميله لار پاته ده.

دا مهال يو دم برېښنا راځرګنده سوه چي روڼا ئې د ستارې او حسن جهاني دواړو بدنونه وځلول. خو د برېښنا په دې روڼا کي هغسي ځلا موجوده نه وه څومره چي د خوانو او ښکلو نجونو يعني ستارې او حسن جهاني په څيرو کي وه. دواړي د څوارلسمي سپوږمۍ غوندي ځلېدلې. د دواړو مخونه سره او سپين ول. سترګي ئې غټي او زړه وړونکي وې. هسي خو دواړي نجوني ډېري ښايسته وې مګر حسن جهانه د ښايست لمر وه. هغه تر ستارې هم ډېره ښکلې وه او په تياره کي ئې د مخ څخه شغلې راپورته کېدې.

داسي ښکارېده لکه برېښنا ... د هغوی دواړو تر مخونو قربانېدله. دا ځکه چي هغه پرله پسې او بې له وقفې ځلېدله. کله چي به برېښنا وسوه او دغو ښکلو به سترګي پټي کړې يا به ئې ورپولې نو د هر چا پام به ئې بې اختياره وراړاوه.

د برېښناوو په دې څپو کي اوريځ نوره هم ليونۍ کېده او باد هم ورسره توندېدی.

عبدالرحمن داسي وويل: ستارې لوري! کړکۍ بنده کړه، باد توند سو، هوا هم سړه سوه.

سپين مخي ستارې هم کړکۍ بنده کړه. عبدالرحمن د شېرخان خوا ته راغی او داسي ئې ورته وويل: دواړي نجوني بالکل آرامي دي.

شېرخان ورته وويل: پر دې لاره باندي څومره ګڼي وني دي. دلته خو دونه تياره ده چي آن د لاسو ګوتي هم نه معلومېږي.

عبدالرحمن دا مهال کمپل پر ځان راکش کړ او وئې ويل چي: دا څومره يخ دئ، زما لاسونه او پښې خو کار نه سي کولای. لکه چي د لاسو ګوتي مي بې حسه او فلج سوي دي.

شېرخان يو څه ويل چي هلته په ګڼو ونو کي يو شی وخوځېد او ږغ ئې واورېدل سو.

آسونو هم خپل غوږونه بوڅ ونيول. سپرليو غوږ ونيو چي څه خبره ده. عبدالرحمن له شېرخان څخه وپوښتل چي تا يو ږغ واورېدی؟

شېرخان ورته وويل چي: هوکې، ښايي کوم حيوان به وو، خو توپنچه په لاس کي ونيسه.

عبدالرحمن: څنګه ئې ونیسم؟ زما خو لاسونه له یخه هیڅ کار نه کوي.

شېرخان: زما د لاسو هم همدا حال دئ. که خدای مکړه دا مهال غله راسي نو موږ خو هیڅ هم نه سو کولای.

عبدالرحمن: والله چي همداسي ده، دغه ساړه خو...

عبدالرحمن لا خپله خبره نه وه پوره کړې چي په هوا کي د توپک ټک واورېدل سو. عبدالرحمن او شېرخان دغه ږغ په ډېره حیرانتیا سره واورېد. شېرخان داسي وپوښتل: آیا دا زموږ د کسانو څخه یو چا ټک وکړ؟

عبدالرحمن: یا، د توپک د ټک دغه ږغ د ونو له منځه راغی.

شېرخان: خطر دئ، حتماً کومه خبره ده. ټول توپک او توپنچو ته مرمی تېري کړئ او خپل تګ نور هم تېز کړئ...

د شېرخان خبره لا پای ته نه وه رسېدلې چي د راسته خوا له ونو څخه ۱۰۸ وسله وال کسان راووتل او لاره ئې بنده کړه. له هغوی څخه یوه نفر داسي وویل: ودرېږئ. امر درته کوم چي توپکونه مو پر مځکه کښېږدئ.

د دغو خلکو په لیدو او د ږغونو په اورېدو سره ټول سپرلي د یوې شېبې له پاره بې حرکته او پټه خوله سول. خو شېرخان بې له ځنډه راټوپ کړ او داسي ئې وویل: تاسي څوک یاست؟ څنګه له حکومتي کسانو څخه وسلې غواړئ؟

د راغلو کسانو څخه یوه نفر پر ستوني زور وکړ او داسي ئې ورته وویل: زه سید حسن د بچهٔ سقاو سپه سالار یم.

د بچهٔ سقاو د لوټماریو د پیل راهیسي د ده او سید حسن نومونه خورا مشهور سوي وه. لکه څنګه چي بچهٔ سقاو یو مجهول الهویه وو، هماغسي سید حسن هم چا نه پېژندی. خلکو ته صرف دومره معلوم وو چي هغه د کابل په شمال کي د چاریکار اوسېدونکی وو. د هغه پلار غل او لاره نیوونکی وو. د امان الله خان د پوځ یو افسر هغه په مرمی ویشتلی وړ. د پلار تر وژل کېدو وروسته هغه هم غلاوو او لاره نیونو ته مخه کړې وه. هغه د خپل پلار له قاتلانو د انتقام په لټه کي وو. لومړی پنځلس شل کسان ورسره ملګري ول. خو کله چي د بچهٔ سقاو سره ملګری سو نو ډله ټپله ئې زیاته سوه. دا کسان په شمېر تر څلورو سوو هم واوښتل. هغوی ټول د حکومت څخه ناراضه ول. د امان الله خان څخه ئې کرکه لرل. د حکومتي کارمندانو دښمنان ول. حکومتي مامورین او حکومت پلوه کسان ئې لوټول. حکومت هغوی معمولي غله ګڼل او د سیمي د امنیت په خاطر ئې جبل سراج ته یو کوچنی پوځ لېږلی وو. د دې پوځي ډلي قوماندان ارشد اغا وو.

ارشد اغا ځوان، ښایسته او خورا زړه ور وو. که څه هم بچهٔ سقاو او د هغه شریري ډلي ارشد اغا یو بې تجربه ځوان باله خو سخت ور څخه بېرېدل. ده نور په ښکاره لاره نه سوه نیولای بلکی د راپور پر اساس به ئې موقع ته کتل.

کله چي سپرلیو د سید حسن نوم واورېد نو وبېرېدل. شېرخان هغه ته داسي وویل: سید حسنه! آیا ته پر سپه سالار شیرخان باندي د حملې له پاره راغلی یې؟

سید حسن: هو همداسي ده. کله چي تا له بولک څخه خپله ښکلې لور راروانه کړه، له هماغه وخته زموږ کسانو راپور درلود. زما خبره واوره: نن په افغانستان کي صرف دوې

ښځي ډېرې ښایسته دي. لومړی د امان الله خان مېرمن ثریا او دوهمه ستا لور حسن جهانه. که څه هم افغاني نجوني ډېري ښایسته وي خو دغه دوې ځمکنۍ حوري دي. د بچهٔ سقاو امر دئ، چي زه باید تاسو ټول بندیان کړم او د هغه حضور ته مو بوزم.

شېرخان په قهر سو او داسي ئې ورته وویل: اې غل سید حسنه...

سید حسن د ده خبره غوڅه کړه او داسي ئې ورته وویل: ته غلطه خبره کوې، موږ غله نه یو. غل خو امان الله خان دئ چي د برچې په زور حکومت کوي. هغه د اسلام دښمن دئ. هغه په وطن کي د ټلګراف شبکه جوړه کړې ده، د برق پایې ئې هم شروع کړې دي، د هغه په ماڼۍ کي د برق رڼا خپره ده، هغه د خپلو پلرونو ټولنیز سیستم خوشي کړی او د عیسویانو طرز ئې غوره کړی دئ. هغه پر خپل رعیت باندي ظالمانه مالیه وضع کړې ده. جبري عسکري قانون ئې منظور کړی دئ. دا څومره لوی ظلم دئ چي د هري کورنۍ څخه به شپږم کس عسکرۍ ته ځي.

شېرخان: سید حسنه! نن چي افغانستان د امان الله خان په عصر کي څومره پرمختګ کړی دئ دا یوازي ما او تا ته نه بلکي ټولې نړۍ ته واضح او روښانه ده. ته ښه پوهېږې چي افغانستان مخکي آزادي نه لرله بلکي د انګرېزانو تر یوغ لاندي وو. هیواد د برتانیې مستعمره وو، غازي امان الله خان تر هر چا لومړی د اغیارو واک پای ته ورساوه او خپلواکي ئې وګټله. دغه ځوان او مدبر امیر په ۱۹۱۹ کی د آزادۍ اعلان وکړ. انګرېزان ئې وارخطا کړل. هغوی هم جګړه راپیل کړه. د منګلو او تل په جبهو کي موږ بریمن سوو. انګرېزان سولي ته حاضر سول

څو چي افغانستان د خپلواکو هیوادو په ډله کي راغی. ټولو هیوادو د افغانستان استقلال په رسمیت وپېژندی. د ټلګراف د لاین سیستم ځکه وغځول سو چي خبرونه ژر ژر واخیستل سي. د برق څخه اول رعیت ګټمن سو بیا شاهي ماڼۍ ته ورکول سو. جبري پوځي قانون د خپل هیواد د آزاد ساتلو په خاطر جوړ سو. پر هر افغان دا فرض ده چي د خپل وطن او ملت د قربانۍ له پاره چمتو اوسي. موږ د پردیو ځواکونو مقابله هغه مهال ښه کولای سو چي پخپله پیاوړي یو. حکومت دومره کولای سي چي په وس ئې پوره وي. د خپلواک پاتېدو له پاره تل قربانۍ ته اړتیا سته. امان الله خان ته وګوره چي شپه او ورځ د وطن او ملت د ښېګڼي له پاره لګیا دي. هغه د توپونو، ګولیو، بارودو او توپکو جوړولو فابریکې خلاصي کړې دي. پخوا دا هر څه د بهرنیو هیوادونو څخه رانیول کېدل. زموږ پیسې بهر ته تللې . اوس هغه روپۍ زموږ په خپل هیواد کي پاتېږي. په فابریکو کي زموږ ورونه کار کوي. موږ اقتصادي پرمختګ کړی دئ. د هیواد غریبي لیري سوې او خوشحالي راغلې ده.

سید حسن: تا خو بیانیه واوروله. ښه غوږ ونیسه! که فابریکې راغلي دي نو دا ښه کار دئ، تلګراف او برق هم ګټور دي، جبري عسکري سیستم هم د هیواد له پاره ښه دئ، خو د انګرېزانو سره اړیکي شلول کومه هوښیاري وه؟ آیا تا ته معلومه نه ده چي د انګرېزانو څخه هر کال پنځوس زره پونډه راتلل؟ د بهرنیو څخه خو دغه لوی مبلغ د افغانانو د ښوونې او روزنې له پاره راتی.

شېرخان: د افغانستان په پښو کي خو یوازي همدا یو ځنځیر پاته وو چي د هغه د ماتولو څخه پرته هیواد نه سوای خپلواک

کېدای. نورو هېوادو موږ جیره خوړونکی سلطنت بللو. خو نن موږ آزاد یو، د هر هیواد سره چي وغواړو ملګرتیا کولای سو او چي و نه غواړو نه یې کوو. څوک چي زموږ خوا ته په بدو سترګو وګوري سترګ به یې راوباسو. نن چي زموږ هیواد کوم پرمختګ کړی دئ هغه ټول د ازادۍ برکت دئ. یو غلام هیڅکله ترقي نه سی کولای.

سید حسن: کوم شي ته چي ته پرمختګ وایي موږ ئې تنزل او څوړتیا بولو. ته د حکومت سړی یې نو څکه باید د حکومت پلویتوب وکړې. خو یوه خبره راته ووایه: امان الله خان زموږ د علماوو، ملایانو او پیرانو پر خلاف ولي هڅه کوي. د ډېرو ملایانو معاشونه ئې بند کړي دي. علماء نه پرېږدي چي وعظ وکړي، دا ولي؟

شېرخان: نن اکثریت مولویان او ملایان پیسه پرسته دي. هغوی د دنیا بندګان دي. که هیواد برباد او تباه هم سي خو هغوی ته دي پیسه ورکول کېږي. د پیسو په بدل کي هر ډول فتنو او دسیسو ته تیار دي. زموږ د ملک په ملایانو کي زیاتره هغه کسان دي چي نیکه ګان ئې رښتیني ملایان ول. هغوی تل د اسلام خدمت کاوه. خو د هغوی اولاد نه سواد لري، نه ئې تعلیم کړی دئ بلکي صرف د خپلو اسلافو له امله مولویان بلل کېږي. هغسي مولویان د وعظ او نصیحت څخه منع سوي دي چي پخپله په هیڅ نه پوهېږي. نو هغوی به نورو ته څه نصیحت وکړي؟ تر کومه ځایه چي د پیرانو خبره ده، هغوی مطلقاً جاهلان دي. هغوی بدعت کوي. خپلو مریدانو ته د شریعت برعکس حکمونه کوي. هغوی د روپیو له پاره ډول ډول چالونه جوړوي. د دغو کسانو د لوټ مار بندولو له پاره کوښښ روان دئ.

سید حسن: وبه ګورو چي پیران او ملایان کامیابه کېږي او که امان الله خان. ارشد اغا خو زیاتره وخت همدې خوا ته راځي. نو څکه موږ وخت په چټي خبرو نه ضایع کوو او دا امر درته کوم چي نور نو خپله وسله پر مځکه کېښېږده.

شېرخان: موږ د غلو په وړاندي هیڅکله وسله پر مځکه نه اېږدو.

سید حسن ته خښم ورغی او داسي ئې ورته وویل: زه یو وار بیا امر درته کوم چي وسلې پر مځکه کېښېږدئ، که نه په مرمیو به مو سوري سوري کړو.

شېرخان: تر څو چي موږ ژوندي یو وسلې به پر مځکه کېښې نه ږدو.

سید حسن دا مهال یو څه پر شا سو او خپلو ملګرو ته ئې داسي وویل: زړه ورو! دی ئې داسي په اسانۍ سره نه مني. شېرخان په خپل جرئت نازېږي، په مرمیو ئې غلبېل غلبېل کړئ.

غلو یو دم د مرمیو باران شروع کړ. شېرخان او ملګرو یې هم بې له ځنډه په مرمیو سره ځواب ورکړ.

سپین مخو پیغلو چي د مرمیو ږغونه واورېدل ډېري وېرېدلې.

شېرخان او ملګري ئې له یخه رېږدېدل. لاسونو ئې سم کار نه سو کولای او په توپکونو کي ئې ژر ژر کارتوسونه نه سوای داخلولای. نو څکه د دوی له خوا مرمۍ یو څه په ځنډ سره فیر کېدلې. غلو په ډېر سرعت سره مرمۍ ویشتلې. په دې ترڅ کي د شېرخان څو ملګري زخمیان سول.

چوپه چوپتیا د مرمیو په آوازونو سره ماته سوه او دنیا د ګولیو ناوړه ږغ پر سر واخیسته. باران چي له مخکي څخه لا یو څه پیل سوی وو، اوس نور هم تېز سو. باد هم

خپلې څپې مسلسل راپورې وهلې. بربښنا په هماغسې شدت سره جریان درلود چې د رڼا له امله ئې شیرخان غله په سترګو ولیدل. هغوی ټوله پر آسانو سپاره ول. په هغوی کې هم یو غل زخمي سوی وو.

سید حسن د بربښنا په رڼا کې شېرخان ولیدی او بې له ځنډه ئې فیر پر وکړ. شېرخان زخمي سو او راولوېد. په همدې لوېدلو کې ئې داسې وویل: عبدالرحمانه! غلو زه ټپي کړم. اوس ئې ته مقابله وکړه. خو پر عبدالرحمن پاندی هم مرمۍ لګېدلې وه او داسې ئې ورته وویل: دغو بدبختو زه هم زخمي کړی یم.

دا مهال د شېرخان نور ملګري وتښتېدل. سید حسن هم د ګاډیو خوا ته راغی او ښځو ته ئې امر وکړ چې د ګاډیو څخه راکښته سي. بېچاره او مجبورو ښځو د ګاډیو څخه په راکښته کېدو شروع وکړه. په یوه ګاډۍ کې د عبدالرحمن او شېرخان میرمنې وې. په بله کې څو مزدوراني وې. د دریمې ګاډۍ څخه ښکلې پېغلې ستاره او حُسن جهانه راکښته سوې.

کله چې دغه سپین مخي او ښایسته نجونې له ګاډۍ څخه راکښته کېدې، بربښنا وسوه. سید حسن د بربښنا په رڼا کې حُسن جهانه ولیده. ډېر خوشحاله سو او په لوړ آواز ئې وویل: همدا ده، د افغانستان بې مثله ښایسته همدا ده.

هغوی وغوښته چې دواړې پېغلې پر آسونو سپرې کړي خو پېغلو انکار او فریاد وکړ. سید حسن وویل چې یعقوبه څه کوې؟ ژر کوه. داسې نه چې ارشد اغا راورسېږي.

د سید حسن د یو ملګري نوم یعقوب وو. هغه داسې ورته وویل: دا نجونې په آسانۍ سره نه سی کنټرول کېدای.

سید حسن: آینده ډېره نږدې ده، که دا نجونې نه سپرېږي نو په ګولیو ئې وولِه.

یعقوب هم حسن جهانه په غېږ کې واخیسته او د سید حسن پر آس ئې سپره کړه او پخپله ډېر ژر پر خپل آس سپور سو او ستاره ئې ټینګه ونیوله.

ښه توند باران اورېدی. ټول کسان لانده سول. د نجونو میندو چې ولیدل د دوی لوڼې پر آسونو باندې په زوره سپروي نو ژړوي او لوی لوی نارې ئې شروع کړې.

آینده په رښتیا هم بیخي رانږدې سوې وه. یو شخص نابېره له لیرې څخه د یلغار په حال کې را ایله سوی وړ او داسې ناره ئې وکړه: مه بېرېږئ، موږ راورسېدو.

هغه په همدې خبر سره د روښنایي سویچ وواهه. دغه خفیفه رڼا پر سید حسن او د هغه پر ملګرو خپره سوه او ټول ولیدل سول. هغه شخص په اخطاریه ډول وویل چې زړه ورو! باید له دغو غلو څخه یو هم درڅخه ولاړ نه سي.

سید حسن دا مهال غابښونه وچیچل او داسې ئې وویل: ارشد اغا! ته خو د درو ورځو هلک یې.

هو، دا پخپله ارشد اغا وو او داسې ئې ورته وویل: ښه، ستا زما نوم هم زده دئ؟! همدا اوس به د مرمیو ښکار سې.

سید حسن: شکر کوه چې د افغانستان بې مثله ښایسته مې اخیستې ده، که نه ته به مې په خاورو او وینو لړلی وای.

ارشد اغا: د افغانستان بې مثله ښایسته؟ دا بیا څوک ده؟

هغه په همدې خبره سره یو ځل بیا روښنایي پر واچوله. دا وار روښنایي د سپین مخي حسن جهانې پر ښایسته مخ ولوېده. ارشد اغا هغه ولیدله. که څه هم حسن

جهانه غمجنه وه، خو د ګلونو د غوړېدو حالت ئې شرمولی او د هغوی ښکلی رنګ ئې تښتولی وو. قدرت هغې ته داسي زړه وړونکې او نوراني څېره عطا کړې وه چي لیدونکی ئې هرومرو جذب او مسحور کاوه. ارشد اغا چي ورته وکتل نو حیران او بې حاله غوندي سو. کرار کرار د آس څخه رالوېدی چي ناببره سید حسن د توپک ټک پر وکړ. هغه مځکی ته راولوېد خو د ارشد اغا ملګرو پر غلو باندي د توپکونو شپېلی راواړولې او ډزی ئې پر وکړې.

د تیارې له امله توپکونه پرله پسې چلېدل او هدفونه ئې په اټکلي توګه ویشتل. سید حسن خپلو ملګرو ته وویل چي موږ په شمېر لږ یو خو دښمن زیات دئ. نو ځکه بری نه سو ګټلای، را پر شا سئ او وتښتئ.

سید حسن پخپله هم وتښتېد او ټول ملګرئ یې پسي وتښتېدل. د ارشد اغا ملګري ودرېدل. هغوی لیدله چي ارشد اغا له آس څخه رالوېږي، نو ټوله ډېر ژر د خپلو اسونو څخه راکښته سول او روښنایي ئې ولګول. شا وخوا ئې وکتل څو چي ارشد اغا ئې ولید چي بې هوښه پروت دئ. ګردو ورمنده کړه او پر راټول سول. هغوی دا فکر کاوه چي قوماندان ئې د مرمۍ په لګېدو سره زخمي دئ. نو ځکه ئې لاسونه پر تېرول تر څواړونده ټپونه پیدا کړي.

نور بیا ...

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- نفرت یو مړ شی دئ، څوک غواړي د مړي د سر شنخته واوسي؟
- سر نه پوهېږي چي زړه په څه شي پسي روان دئ.
- ستري مفکورې په زړه کي راپیدا کېږي.
- امید د خوشحالۍ یو جوړوونکی عنصر دئ.
- دا یوه عمومي قاعده ده هغه څوک چي زیات معلومات لري ډېر موفق دئ.
- د ژوند د بې ګناهۍ بایلل د پوهي قیمت دئ.
- ازادي څه شي ده؟ خوند دئ. خوند څه شي دئ؟ ازادي ده.
- په لاس کي د ښو ورقو لرل د لوبي د ګټلو له پاره کافي نه دي بلکي د ورقو ښه لوبول ضروري دي.
- ژوند که خوشحاله وي که نه وي، که موفق وي او که نه وي په هر صورت په زړه پوري دئ.
- هغه څوک چي غوږ نیسي هغه پو هېږي.
- ژوند د خوږېدو او رغېدو یوه سلسله ده.
- د ژوند سره مینه د اوږد ژوند سره د میني ضد ده.
- هدف هغه وخت بایللی شمېرل کېږي چي لاس ځني واخستل سي.
- ښه بخت د احمقانو پاسبان دئ.

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department



پر نازل دی دیر انوار سی      هم دی جای دار القرار سی

فی مدح حضرت غوث الثقلین قدس سره

خما پیر غوث الاعظم دے      مجتبیٰ عالی شیم دے

مقدس عالیجناب دے      پاکیزه ارشاد مآب دے

نتیجه د اتقیاد دي      بقیه د خلفا دے

نقاوه دی د زهادو      هم عمده دی د عبادو

هم مخدوم عالی نسب و      هم معلوم په نسبه حسب و

قواعد که د معقول دے      عقائد که د منقول دے

لمعات که د جمال دي      فرحات که د جلال دے

په هر فن کی دی ماهر دے      و عالم ته پښه ظاهر دے

هم مظهر و د اسرارو      هم مهبط و د انوارو

کمالات که د لاهوت دے      ملکوت که د ناسوت دے

محقق و مدقق و      په ټول عصر کی فایق و

مناقب یې عالیه دے      مناصب یې عالیه دے

هم دی قطب د اقطاب دے      پاکیزه یې لوی جناب دے

هم کاشف د هر اسرار و      هم ناظر د هر اقطار و

حقایق که عوارف دے      که ارشاد که معارف دے

هدایت که سعادت دے      لوی دافت که درایت دي

هم ناسک د مناسک دے      دین قویم له مسالک دے

د ارواښاد سید محسن قندهاري "د کندهار مزارات"

د ارواښاد عبدالاحد اخوندزاده غریبک په ښکلي خط